# انساني ذهن

## او تخليقي تنده



ډاکټر باقي دُرانے

د کتاب نوم: انساني ذهن او تخليقي تنده



ليکوال : پروفېسرډاکټرعبدالباقي دُرانی

durraniab @ yahoo.com



لومړے چاپ

د چاپ کال : ۲۰۱۸

د چاپ ځای : لاهور

د چاپ شمېر : زر ۱۰۰۰ ټوکه

بيه : درې سوه کلداري


## دليکوال کتابونه:

۱- پښتانهٔ د تهذيب په څپو کې
۲- د فکر تال [دسړيتوب فلسفه]
۳- انساني ذهن او تخيلقي تنده
۴- د جانان خيال
۵- د احساس پرتو


چاپوونکے او خپروونکے صحاف نشرياتي مؤسسه

الامان اخکزے پلازا کاسي روډ کوټه

hamdullahsahaf@yahoo.com

# ټرون

د خوشحال خان خټک په نامه

چاپي د نظر په زاويه او دتخليق په رڼا

پښتو ژبه ژوندۍ او ګړندۍ وساتله

.

# لړلیک


| سرلیک | مخ |
|---|---|
| ۱- پېل | ۷ |
| ۲- انساني ذهن | ۲۷ |
| ۳ - فکر | ۵۱ |
| ۴- احساس | ۶۷ |
| ۵ - یاداښت | ۷۷ |
| ۶- د عقل شپول | ۹۵ |
| ۷- شخصیت او نفسیات | ۱۱۷ |
| ۸ - شعور او لاشعور | ۱۲۹ |
| ۹ - د ژبې ځواك | ۱۴۵ |
| ۱۰- ژبپوهنـه | ۱۷۱ |
| ۱۱- تخلیقي ژبه | ۱۹۵ |
| ۱۲ - تخلیقي تنده | ۲۰۹ |
| ۱۳- تخلیقي نفسیات | ۲۲۷ |
| ۱۴ - تخلیقي محرکات | ۲۵۳ |
| ۱۵ - تخلیقي عمل | ۲۶۳ |
| ۱۶- تخلیقي معیار | ۲۷۹ |
| ۱۷ - تخلیق او دنظرزاویه | ۲۹۹ |

.

ژوند خو تلۀ دي يو په مخه
غورځېدل او پاڅېدل دي
ټکے سوز او ټکے ساز دے
څۀخندل دي څۀ ژړل دي

غني خان

.



بسم الله الرحمان الرحيم

# پیـل

که څۀ هم روايت دادے چي مصنف د کتاب سريزه د خپل وخت په لويو لويو ليکوالو ليکي او خلګ يې هم ښايي چي د دوی د برکته اخلي او لولي يې- خو زۀ چي کله تر کتاب ليکلو وروسته د چاپَولو اراده وکړم او د لويو ليکوالو نومونه را په ياد کړم نو فکر کوم چي څوك به زما پر کتاب دمقدمه ليکلو تکليف کوي؟ بيا دا سوچ هم راولويږي چي د دې زمانې مصروفه لوستونکي که په اوږدۀ پيل ستړي کړم نو څۀ رنګه به زما د کتاب دمطالعې دروند بار ترمنزله رسوي؟ يوې خوا ته خو لوستنه پخپله ډېر ګران کار دے بلي خوا ته بيا چي د تاريخ ، تهذيب ، فلسفې او نفسياتو غوندي ستوخ مضمونونه مخي ته راشي نو يې لوستنه دغومره نوره هم ګرانه ښکاره شي- ځکه نو زۀ پخپله د څو کرښو ليکلو همت کوَم او دا باور وركول غواړم چي فلسفيانه او علمي بحثونه همدغومره خوندَور دي لکه چي شاعري او خوارۀ نثري ادبي ليکونه ، ولي چي ستر فکر او لوړ خيال د هر چا خوښېږي ، که څوك برخه پکښي اخلي او که نۀ-

دپوهَني يا عقل او دانش پر موضوع چي کوم مواد تر اوسه موجود دے ، بايد چي د نظر په سمه زاويه يې جاج واخست شي او په رڼا کي يې د هغه پېهم سفر بېلا بېل منزلونه وټاکل شي کوم چي وَ ژوندون ته معنا ورکوي ، قام ته عظمت وربخښي او وګړي يې درندتيا په مومي- که څۀ هم زموږ قبايلي ټولنه د علم او دانش څخه لري پاته شوې ده او ژبه مو لا هم تر اوسه د فلسفې ، ساينس او ټېکنالوژۍ نه خالي ده خو زۀ مايوسه نۀ يم او نۀ د ياسيّت پرستانو مرستيال يم- ولي چي دغه کارونه خو واړه په انساني ذهن کيږي او موږ د انسانانو په حېث هماغه شان ذهنونه لرو لکه نور خلک- زۀ دلته دځلاند مُستقبل په هيله د انساني ذهن او پکښې د پېچلي بشپړ فکري نظام يوه لنډه غوندي جايزه اخستل غواړم چي په نتيجه کي يې د انساني تخليقي تندي څۀ نۀ څۀ وضاحت په وکړ شي-

ذهن په انساني دماغ کي دننه د هغه بشپړ غېر مادي قوّت نوم دے چي انسان په خپل ژوند کې بې شمېره او بېلا بېل کارونه ترې اخلي[1]- دا زياتره د عمل او ردِعمل په توګه زموږ ترمشاهده لاندي راځي او موږ يې د رَويې په نامۀ يادؤ- د دغو دواړو ساينسي علم نفسيات بلل کيږي- تخليقي تنده د انساني ذهن يو مخفي صلاحيّت دے او تخليقي عمل يوه خاص رَويه ده چي په تخليق کوونکو کي ليدله کيږي- ځکه نو د دغو دواړو يو له بله سره تړاو او پر نفسياتي اصولونو يې جاج اخستنه د دې کتاب اصل موضوع ده- تخليق يوازي د انساني ذهن کرشمه ده ، په نورو ځناورانو کي يې هيڅ يو

مثال هم نشته- تخليقي ذهن هغه ذهن دے چي انسان په تواتر سره تخليقي کار ترې اخلي ځکه يې نو ورو ورو مېلان په همدغه خوا شي- د انسان د فکر، احساس او يادابښت اړه په همدغه غېرمادي ذهن پوري ده- او دغه درې واړه صلاحيّتونه چونکي په تخليقي عمل کي برخه لري ځکه نو په دې کتاب کي بحث ورباندي شوے دے-

د ذهن او دماغ سره سره د انساني کوپړۍ په کلك خول کي چرته يو بل عجوبه غوندي غېر مرئي او غېر مادي څيز هم شته چي په عمومي توګه د نفس په نامۀ يادېږي- دا د انساني ذهن د هغې برخي نوم دے چي پر شعور، زېرشعور او لاشعور مشتمل دے- ځکه نو نفسيات هغه علم دے چي د انساني شعور، زېرشعور او لاشعور جاج اخلي- د فکري نظام په تشکيل کي انساني دماغ، ذهن او نفس درې واړۀ ګډون لري خو اصل رول پکښې د ذهن دے چي په دغه اړه د کُل حېثيت لري- د تخليقي تندي تړاو بيا د انساني ذهن د هغي برخي سره دے چي د نفس په نامۀ يادېږي او په زياته بيا د لاشعور سره- ځکه نو په دے کتاب کي پر دغو موضوعاتو هم څۀ نۀ څۀ بحث شوے دے-

تخليقي تنده په انساني ذهن کي ځان لره يو داسي پېچلے نظام لري چي په آسانه توګه سر پرې نۀ شي خلاصېداى ځکه يې نو تر بحث له مخه د ذهن د بېلا بېلو برخو جاج هم اخست شوے دے- چونکي د تخليقي تندي اړه په ذهن کي دننه د فکري نظام په تشکيل پوري ده ځکه يې پلټنه هم د انساني ذهن د ځينو هوډرو برخو د

پلټني سره تړاو لري- پر دغه موضوع چي كوم مواد موجود دے ، هغه لا تر اوسه د تخليقي تندي په صحي معنا احاته نۀ شي كولاى ځكه نوورباندي د نور هم ډېر څۀ ليكلو ګنجايش شته- بايد چي د نظر په سمه زاويه يې بيا بيا جاج واخست شي- تخليق هغه اعلیٰ انساني خاصيت دے چي يو انسان له بشر يا كس څخه بېل او ممتاز په ښكاري- تخليق د تخليق كوونكي په داخلي تخليقي تنده پوري اړه لري چي بېلا بېل محركات يې دي او تفصيل به يې وروسته وړاندي كړل شي- تنده په انساني نفس كي د طلب يو داسي احساس دے چي د آخري حد تعيُن يې نۀ شي كېداى[2]- د انسان د ځان پېژندني يو مهم جز تنده يا طلب دے ، بل يې سعي يا كوښښ دے او درېيم يې نظريه ده- تنده يې د پرمختګ هغه احساس دے چي دے په پيوسته هلو ځلو خوښ كاندي- په تاريخي توګه د انسان د ذِهني ترقۍ ، ذهانت او پوهې منزلونه څۀ په دې ډول دي:

۱ - د ژبي ځواك

۲ - د تيارې تسخير

۳ - پر ځناورو برے

۴ - كر او كښت

۵ - كور ، كِلے او ټولنه

۶ — اوزار

۷ - اخلاق

۸ — علم

۹ — تحرير

۱۰- تعليم

۱۱- تخليق

۱۲- ساينس

۱۳- ټېکنالوجي

۱۴- طباعت

د نورو ډېرو بېلا بېلو صلاحيّتونو په شان د ژبي ځواك د ذهن يو مخفي صلاحيّت دے چي انسان د خپل داخلي فکري قوت بشپړ اظهار په کولای شي- ورسره ورسره دا د زدکړي او پوهې يو ستر قدرتي صلاحيت هم دے چي په شعوري هلو ځلو ډېر اوچت کارونه ترې اخستل کېدای شي- ژبه چونکي د ادبي تخليق د اظهار مُهمه ذريعه ده ځکه نو چي ځومره دا د تخليق سره اړه لري هغومره به ورباندي بحث کوو- انساني ژبه نهٔ خو پخپله جوړه شوې ده او نهٔ يې بې له څهٔ کوښښه ځواك موندلے دے- که څهٔ هم دا د بهاندو اوبو په شان د خپلي لاري تعين تر ډېره حده پخپله کوي خو انسان يې په خپل زيار لار بدلولای شي- کله ورخ ورته ترې او کله يې مخه دلي دوري اړَوي- له پېړيو راهيسي د انسانانو د پېوسته هلو ځلو نتيجه دا ده چي اوس موږ د خپل ذهن د داخلي قوت بشپړ اظهار په خپله ژبه کولای شو او خپله خپله ادبي تخليقي تنده هم په ماتولای شو- د

انسان داخلي قوت د دۀ په ذهن کي وده کوي لګيا وي خو په خارجي دنيا کي يې د اظهار مُهمه ذريعه ژبه ده- په تاريخي توګه اولنے انسان بلکل ساده غوندي ؤ خوراك څښاك او پوښاك يې له حېوان نه څۀ ډېر بېل نۀ وو او ژبي يې هم د غورو لفظونو زخيره نۀ لرله- د خپل داخلي ذهني قوت اظهار به يې په څو ساده غوندي لفظونو کاؤ- دغه اولنۍ انساني ژبه ورو ورو د پېړيو تر هلو ځلو وروسته بدلېده لګيا وه- تر دې حده چي بېلا بېلي ژبي ترې پېدا شوې او هره يوه دشعر وشاعرۍ او ساينس وټېکنالوژۍ تر منزله ورسېدله- دا د ژبي ځواك يا قوتِ ګويايي دے چي انسان يې د ترقۍ تر منزله ورساؤ کنې د دۀ فکر احساس او تجربه خو تر هغه وخته يوازي د دۀ په خپل ذِهن کي موجود وي ترکومه چي يې دے اظهار ونۀ کړي- لفظونه د انساني احساساتو ، خيالاتو ، تصوراتو او يادا‌ښتونو نمايندګي کوي او دا د وخت په بهاو کي او د تاريخ په څپو کي په تواتر سره زياتيږي او بدليږي - که د ژبي ځواك مۀ وای نو به د عقل شپول ښايي چي د وحشت تر هغه پخوانۍ دايره مخته نۀ وای تللے- فلسفه ، نثر ، شاعري ، تاريخ او تهذيب واړه به تر دې منزله نۀ وای رسېدلي چيري چي يې موږ اوس وينو- بېلا بېل خارجي عوامل هغه احساس راپاڅوي چي انسان د ډېر څۀ کولو صلاحيت په مومي- خو احساس ، فکر او تجربه ټول د ژبي په بڼه د اظهار يوه بشپړه ذريعه غواړي کنې يوازي د پوهۍ په رڼا د حقيقت تلاش ممکن نۀ دے- ځکه نو دعقل ودانش فلسفه د ژبي ځواك ، مورنۍ ژبه ، خوندي ژبي

ژبپوهنه او تخليقي ژبه هم تر بحث لاندي راوړي - هره ژبه علمي ، تخليقي ، ساينسي او ټېکنيکي ژبه جوړېدای شي خو ترقي يې د ويونکو ، لوستونکو او ليکوالو په شعوري هلو ځلو پوري اړه لري-

د تيارې تسخير د انسان د پوهې او ترقۍ دوهم منزل ګڼل کيږي- دا اټکل چي يوه پر بله د نښتو له کبله د دوو ډبرو تر منځ اور پېدا شو او خاشو يا وښو هم اور ترې واخست ، د انسان د ترقۍ په سفر کي يو بل مهم حقيقت ثابت شو- ګرمي او رڼا دواړه يې د همدغه ايجاد په نتيجه کي حاصل کړل- له يخه يې خپل نسلونه په وژغورل او د شپې په تورو تيارو کي يې څراغونه په بل کړل- په همدغو څراغونو يې په تورو تورو شپو کي د دښمن تلاش پېل کړ او د ځان ژغورني نوي نوي طريقې يې زده کړې- ورسره ورسره يې د مثبت فکر په ذريعه پر ځناورانو برے وموند- پسونه يې د خوراك په کار راوستل- اوښ ، آس ، خر او غويږے يې د بار او سپارلۍ د پاره استعمال کړل- د خوراك پخلے يې زده کړ او غذايي ضرورتونه يې د نوو نوو ځيزونو د پخلي په برکت پوره کړل- کوم ځيزونه چي يې ضرورت شول د هغو د زياتولو په موخه يې کر او کښت پېل کړل-

دځان ژغورني په موخه به انسان ډَبري تراشلې ، چاړهٔ او چِټك غوندي دضرورت اوزار به يې ترې جوړَول- له هډونو څخه به يې غشي جوړَول- ورسره ورسره يې کر او کښت زيات کړل او کروندې يې آبادولې- کله چي له کښت او کروندو څخه د انسان د خوراك ضرورت پوره شو نو يې د ټولني د ښېګړي ضرورت محسوس کړ-

اخلاقي ارزښتونو ته يې اهميت ورکړ ، علم او فنونو ته يې پام شو- واړهٔ واړهٔ ايجادونه به يې کول حتیٰ چي ورو ورو يې د تحرير بېلا بېلي طريقې ايجاد کړې- همدغه راز يې ښايي چي وروسته د دغو طريقو تعليم وخپلو راتلونکو نسلونو ته هم ورکاؤ- د ترقۍ منزلونه يې ورو ورو سر کول روان دوان ؤ ، تر دې حده چي واړهٔ واړهٔ تخليقونه يې پېل کړل- غاړي ، لنډۍ او نکلونه به يې تخليق کول- دغه تخليقي عمل ورو ورو وده کوله او د زمانې سره سم تر اوسنۍ سطحي را ورسېد- ورسره ورسره په پيوسته هلو ځلو انسان د ساينس او ټېکنالوجۍ تر اوسني دور پوري سفر را وکړ او په طباعت کي يې د انفارمېشن ټېکنالوجي په ذريعه د ميډيا تر اوسنۍ سطحي پوري ځان را ورساؤ-

موږ لا تراوسه د ترقۍ په سفر کي د دغو څوارلسو منزلونو په منځ کي ولاړ يو- تحرير ، تعليم او تخليق مو پر سمو کرښو پرمختګ غواړي چي په ټولنه کي نظم ، خوند او ښايست پېدا شي- د حق او ريشتيا جستجو په وشي ، چي د وراشهٔ يا استدلال موخه يې د ژوندانهٔ پر حقيقي اهميت رڼا اچول وي- په همدغه موخه مي څهٔ موده وړاندي يو مختصر غوندي تاريخي او تهذيبي کتاب[3] ' پښتانهٔ د تهذيب په خپو کي' ليکلے ؤ اوبيا مي په خپل دوهم کتاب[4] 'دفکرتال' کي پر علمي بنسټ د انسانيت تر معنوي سطحي د رسېدو افغاني تصوّر يعني ' سرېتوب' تر بحث لاندي را وَړے ؤ - د دغه کتاب نوم مي داحمد شاه بابا له دې شعر څخه اخستے ؤ چي[5]:

ته د فکر په تال کښېوَتې احمده!
دا د ذلفو په تار تار تر اوسه چا وړي

زما په لفظونو کي دومره قدرت نشته چي زهٔ د لوستونکو هغي قدردانۍ لره د تشّکر د احساس بشپړ اظهار په وکړم ، کومه چي دوی د دغو دوو کتابونو وکړه- د علم دايره اوس دومره پراخه شوه چي بې شمېره شعبې يې شوې او د هري شعبې د مندرجاتو جاج اخستنه يې دا وخت تقريبا ناممکنه شوه- ځکه نو پر تهذيب ، تاريخ ، نفسيات او فلسفه غوندي ژورو موضوعاتو ليکلي کتابونه له عېبونو خالي نهٔ شي ګڼل کېدای- له تيرو ځلوېښتو کلونو څخه زما تړاو د صحت د شعبې سره دے چي يوې خواته پکښې ساينس دے او بلي خواته فلسفيانه قياس آرايي- ساينس د جُز په حقله ډېر څهٔ ښئي او فلسفه د کُل په اړه کم کم- په دغه حال کي نو د يوهٔ استاد په حېث زما موخه د عامو خلګو او متخصصينو تر منځ ربط پېدا کول دي- او په همدغه موخه مي اوس د دې درېيم کتاب 'انساني ذِهن او تخليقي تنده' ليکلو پېل وکړ- تخليقي تنده څهٔ ده؟ محرکات يې څهٔ دي؟ او د ذهن سره يې تړاو څهٔ دے؟ دغه شان سوالونه له هغه وخته زما په ذهن کي را پاڅېدل کله چي زهٔ يو طالب علم وم خو د ځوابونو په اړه يې لا تر اوسه همه وخت سرګردانه يم- زياتره به زهٔ د دغو سوالونو د ځوابونو په لټون وم او د کتابونو پر دکانونو به مي په همدغه اړه څهٔ نهٔ څهٔ پلټل ، خو څهٔ به لاس ته نهٔ راتلل- دا به مي هم

کتل چي ماغوندي بې شمېره کسان به د تخليقي تندي د ماتولو په موخه د علمي او تېکنيکي کتابونو په تلاش وو خو څۀ به يې چرته هم لاس ته نۀ راتلل- اکثره به يې د دا رنګه کتابونو د اشاعت خواهش کاوو چي لوستنه يې د تخليق په بنيادي اصولونو سر ورخلاص کړي-

د انسان د علم دايره روځ په روځ پراخېږي - اوهر علم اوس پر بېلا بېلو شعبو وېشلے ښکاري- ځکه نو په ټولو علومو ځان پوهه کول د چا د وس خبره نۀ ده- په دغه حال کي نو پر مباادياتو ليکنه او د کتابونو ورباندي اشاعت خپل بېل جواز لري- په دې کتاب کي نۀ خو زۀ د انساني ذهن د بې کرانه سمندر جايزه اخستای شم او نۀ د تخليقي تندي په اړه د راپاڅېدلو لوی شمېر سوالونو حتمي ځوابونه وړاندي کول غواړم- زۀ خو تش د هغو بُنيادي اصولونو ذکر کول غواړم کوم چي د تخليق پېل کوونکو لره يې په خپل خيال ګټور ګڼم-

اوس هر ځای انساني ذهن منتشر غوندي ښکاري- د دې ځمکي پر سر هره خوا ته انتشار دے- په ټولنه کي بې شمېره منفي فکري رَويو ځای موندلے دے- بېلا بېلو بهرَنيو مداخلتونو د قامونو له پېړيو را روان قبايلي ټولنيز نظام ورختم کړ او څۀ نوے مربوط نظام يې هم ورنۀ کړ- زموږ د خلګو يوه قبايلي او مذهبي ټولنه وه او خپل بېل انساني ارزښتونه يې لرل- يوې خواته پيوسته جنګونو او بلي خوا ته د نوي ميډيا يرغل د دې ټولني اخلاقي ، ايماني او انساني قدرونه واړه ولړزَول- اوس زموږ د خلګو اخلاقي زندګي هغه نۀ ده کومه چي

مخکي ليدل کېده- پېسه د خلګو کمزوري شوه او ايمانونه يې اوس نور قامونه په بيه اخلي - خلک يو پربل سره شکمن دي ځکه نو يو شے هم حتمي او يقيني نۀ شي ګڼل کېدای- په دغه حال کي د مثبت فکري بدلون هيله د نظر په سمه زاويه پوري اړه لري ، چي په انساني ذهن کي يې اړه په احساس ، فکر او يادابښت پوري ده- چونکي تخليق کوونکے د حساس ذهن مالك وي ځکه نو د دغسي حالاتو اثر ببخي ډېر اخلي او فکر يې همه وخت پکښې بوخت وي- البته د تخليق معيار يې په تجربه پوري هم اړه لري چي د يادابښتونو په شکل د دۀ په ذهن کي پراته وي- ځکه نو د تخليق تړاو تر ډېره حده د همدغو انساني ذهني صلاحيتونو سره دے چي مخته به په دې کتاب کي تر بحث لاندي راځي-

ورسره ورسره په دې کتاب کي دا بحث هم څېړل شوے دے چي په دې نوې زمانه کي دسړي په حېث د تخليق کوونکي ذمه واري څۀ ده ؟ کومي کومي امکاني لاري دي چي د قام او ژبي پرمختګ په کېدلای شي؟ او دا په انساني ذهن او د نظر په سمه زاويه څۀ رنګه او تر کومه حده اړه لري؟ په دې کتاب کي د انساني ذهن ، فکر ، احساس ، تجربې ، عقل ، دانش ، شعور ، لاشعور ، نفس ، بصيرت ، ضمير ، ژبي ، ادب ، کلتور ، جمالياتي معيار ، تخليقي ارزښتونو ، ثقافتي مېلاناتو او روحاني وارداتونو لنډه جايزه اخسته شوې ده- او د ځينې راپاڅېدلو نوو نوو مسئلو د حل د بېلا بېلو امکاني زاويو جاج هم پکښې اخست شوے دے-

د ژوندانهٔ حاصل په اصل کي د فکر پختيا ده- زهٔ فلسفه دفکر پختيا ځکه بولم چي ښېخکی موخه يې په ريشتيا هم د ژوندانهٔ د سمي لاري ټاکنه ده او دا د نظر په سمه زاويه پوري اړه لري- هغه زاويه چي په عملي توګه خلګو ته پر سمه لار باندي د تګ پوهه ورکوي- دانساني ذهن او تخليقي تندي په اړه پر ډېرو ځايونو فلسفه او نفسيات يو په بله شکېل ښکاري- د فکر ، احساس او دانش سره د فلسفې او نفسياتو دواړو ټينګ تړاو دے- زهٔ ستر فکر او آ ګهي ځکه د فکر پختيا ګڼم چي دا د ژور احساس په نتيجه کي د يوهٔ داسي پاخهٔ سکيم په جوړښت کي مرسته کوي ، کوم چي قام را ويښَوي او په دغه ويښتيا د رڼا په شان لار ليدل کيږي- دا رڼا د فلسفې او نفسياتو سره سره کله د غزل په شګفتګي کي ښکاري کله د افسانې په سسپينس کي ليدل کيږي او کله د ناول په بېلا بېلو منظرونو کي- کله د قدرت په رنګارنګ نندارو کي محسوسيږي او کله په ښکلي مصنوعي بناو او سينګار کي هم برېښي- کله د بدلون لار په ليدل کيږي او کله يې خلګ په ماحول کي د غوره بدلون په وخت هغه خوند اِحساسَوي چي په لفظونو کي يې بيان ډېر مشکل دے- معنا دا چي د سمي لاري په اړه د يوهٔ پاخهٔ سکيم په جوړښت کي د نظرسمه زاويه لازمي ده چي تړاو يې د ستر فکر ، ژور احساس او پراخي تجربې سره دے- او تخليق په همدغو ذهني صلاحيّتونو کيږي- د تخليق کوونکي د نظر په سمه زاويه قام ويښتيا مومي او دغه ويښتيا په ټولنه کي د يوې داسي رڼا په مثال ده چي په هره توګه د بيان ترحد بالا ښکاري-

فلسفه د ساينس او فيكشن عېن تر منځ ولاړه ده-كله يې نظر د ساينس پر طرف شي او كله د آرټ پخوا- بُنيادي ټكے يې د نظر سمه زاويه ده او دا زاويه تيك د منزل پر طرف لاربښونه كړي- دغه زاويه لكه چي په رياضي كي د جيومېټرۍ د بېلا بېلو شكلونو د جوړښت موجب ده هماغه شان په آرټ كي د صحي سمت ښوونه كوي- دا لكه رڼا چي په كومه خوا يې مخه شي هغه څيز ښهٔ په ايسي ، صاف په ښكاري او جوهر يې ظاهر شي- دا و ژوند ته يوه بېله معنا وركوي او شعوري تلاش ته د دليل په قوت اهميت او استحكام بخښي- خو ورسره ورسره پر دې يقين كول هم لازمي وي چي فلسفه ، آرټ او ساينس يو له بله دومره بېل نهٔ دي لكه چي په ظاهره ښكاري- دا درې واړه داسي علوم دي چي هر وخت يې يوه نهٔ يوه پلټنه په مخه وي- د درو واړو د بحث اصل موضوع انسان دے- هر يو د انسان او كاينات په اړه د بېلا بېلو پېچلو مسئلو د حل په تلاش دے- ساينس خو په اصل كي له فلسفې زوكړے دے ځكه خو نامتو ساينسدان آلبرټ آئن سټائن وايي[6]:

"The whole of Science is nothing more than a refinement of everyday thinking"

معنا دا چي ټول ساينس د هري روځي د عام فكر تر تراشلو بالا هيڅ هم نهٔ دے-

په دې کتاب کې يوې خوا ته د انساني ذهن ، احساس او تجربې پر بنسټ د تخليقي تندي وضاحت شوے دے ، بلې خوا ته دفکر د پختيا په اړه د نظر د زاويې پر اهميت هم په وروستۍ برخه کې بحث شوے دے- په دې بحث کې د ډېرو نوو سوالونو د ځوابونو د کوښښ سره سره لوستونکو ته د ژوندانۀ پر نوو نوو مسئلو په ساينسي انداز د غور او فکر کولو بلنه هم ورکړه شوې ده- ولې چې په دې سيمه کې دا دور هماغه شان دے لکه چې د سقراط په وخت کې يونان ؤ- د خلګو په کردارکې هماغه ځۀ ښکاري کوم چې هغه وخت ليدل کېدۀ- هماغه شان مسئلې دي کومې چې په هغه وخت کې وې- هغه وخت هم خلګ د فکر د آزادۍ په هلو ځلو وو او همدغه يې د نجات لار ګڼله ، نن هم دغه ټولنه د نجات په هلوځلو ده- هلته هم خلګو ته دفکر بلنه ورکړل کېده چې نجات ومومي- دلته هم ضرورت دے چې خلګ د فلسفې د بېخکې اصولونو پوهه ولري او په آسانه توګه د ژوندانۀ په فلسفه سر خلاص کړي ، چې بيا يې په عمَلي کولو کې ځۀ خنډ نۀ وي-

خلوېښت کليز لوی ناورين چې د روسي مداخلې سره پېل شو او تر اوسه لا دوام لري ، د دې سيمې د خلګو پر اعصابو ګڼ شمېر اثرات پرېښول- د خلګو اجتماعي نفسيات يې تر ډېره حده وربدل کړل- خلګ اوس د امنيت او تعليم په اهميت آګاه شول او پر ساينسي کرښو د پرمختګ په هلو ځلو دي- د جنګ او جهالت بربادۍ يې وليدلې ، د وران وطن کنډوالې اوس آبادول غواړي- د

مخکښو په انتظار دي چي د قافلې پوړي ونيسي او په سمه خوا يې روان کړي- خو په دې حقله د مخکښو د نظرسمه زاويه تر هرڅهٔ مُهمه ده او همدغه دلته تر بحث لاندي ده-

که څهٔ هم اوس په دې سيمه کي تربېلابېلو ستونزو وروسته نوي نوي فکري او عملي خوځښتونه را پېدا شول ، خو د ژوندانهٔ د څهٔ نوي مربوطي فلسفې او واضح نظريې زېږے چا راباندي ونهٔ کړ ، ځکه مي پام په دې خوا را واوښت- دا کتاب د فلسفې پر هغو بُنيادي ټکو هم بحث کوي کوم چي په دې سيمه کي دا وخت په فکري توګه ډېر مهم دي- دا سيمه په علمي ، هنري او معاشي توګه د نړۍ تر نورو سيمو ځکه ډېره شاته پاته شوه چي په وګړو کي يې فکري پختيا نشته- روښان مستقبل يې په دې پوري اړه لري چي مخکښان ، پوهان او ليکوال يې د نظر زاويه سمه کړي او په سمه توګه دخلګو رهنمايي وکړي- د خپل فکري مکتب له نوې سره تشکيل وکړي او د استدلال لاره خپله کړي ، ولي چي د فلسفې مرام خو د وراشهٔ پر بنسټ معقوليت پيدا کول دي نهٔ چي يوازي بېلا بېل اصولونهٔ وضع کوَل- ځکه خو نامتو جرمن فلاسفر امانويل کانټ وايي چي[7]:

“The business of phiolosophy is not to give rules, but to analyse the private jugements of common reason”.

يعني د فلسفې موخه اصولونه وضع کول نهٔ دي بلکي د عام استدلال د انفرادي فېصلو تجزيه ده-

د فکري مکتب په اړه زما دوهم کتاب 'دفکرتال' پر همدغه اصول ستاسو په درانۀ خدمت کي وړاندي شوے ؤ- زما په نظر سرېتوب يو اوږد سفر دے چي پېل يې له ځان پېژندني څخه کيږي او بيا د انسانيت تر معراجه د رسېدو پوري دوام لري- دا د فکر ، احساس ، عقل ، علم ، تجربې او پوهې په برکت ممکن دے-

په لومړي کتاب 'پښتانۀ د تاريخ په څپو کي' مي ځای ځای د تاريخ د فلسفې ذکر کړے ؤ چي د تاريخ خپله جُدا فلسفه ده او فلسفه خپل بېل تاريخ لري- وجه يې دا وه چي د تاريخ او فلسفې تړاو هم دغومره مهم دے لکه چي د ساينس او فلسفې او يا بيا د تخليق او فلسفې تر منځ تړاو دے- چونکي 'تخليق او فلسفه' ځان لره يو مهم موضوع دے ځکه مي په دې کتاب کي څۀ نۀ څۀ بحث وړباندي کړے دے- په دې کتاب کي هم د تاريخ فلسفه ځای ځای تربحث لاندي راځي ولي چي تاريخ يوازي د تېر وخت د واقعاتو ريکارډ نۀ دے او نۀ د دغو واقعاتو د پېش منظر او پس منظر په ليکلو د تاريخ حق ادا کېدلای شي ، بلکي ورسره ورسره يې د دې وخت د حالاتو په رڼا کي فلسفيانه جاج اخستل هم ضروري دے- امريکن فلاسفر ريچرډ راورټي[8] ځکه ويَلي ؤ چي:

"Historical knowledge is not simply the accumulation of observed facts about the past; rather, it represents an examination of the past that is shaped according to current concerns".

يعني د تاريخ علم يوازي تر دې حده نهٔ دے چې د تېر وخت پر مشاهده شوو څيزونو مبني وي ، بلکې دا په اوسني تناظر کې د تېر وخت کره کتنه ده-

لنډه دا چې دغه کتاب 'انساني ذهن او تخليقي تنده' پر بېلا بېلو برخو وېشلے دے- په لومړۍ برخه کې يې پر انساني ذهن بحث شوے دے او هغې کړښې يې تر نظر لاندې راغلې دي په کومو پورې چې د تخليق اړه ده- بيا د فکر ، احساس او تجربې جاج ځکه پکښې په ساينسي توګه اخست شوے دے چې د اوسني وخت د نوو ليکوالو د استدلال بنسټ جوړ شي او دنقد او نظر نوي اصولونه منځ ته راشي- تر دغو وروسته د عقل او دانش جاج په دې هيله اخست شوے دے چې دفکر او عقل تر منځ توپير په وشي او دا وضاحت هم وکړ شي چې عقلي استدلال تر يوهٔ خاص حده صحي ګڼل کېداى شي- تر دغه حد دباندې بيا يقين ورباندې نهٔ شي کېداى- عقل دانساني ذهن يوه مهمه برخه ده خو د کار کولو يې يوه محدوده دايره ده او دغې دايرې ته په دې کتاب کې دسپوږمۍ د شپول سره مشابهت ورکړ شوے دے- دا يو داسې شپول دے چې مشاهده يې د ذهن پر آسمان په آساني کېداى شي- مخته د ژبې جاج په بېل انداز او پر ساينسي کرښو پکښې اخست شوے دے او دا حقيقت پکښې څرګند دے چې د ژبې ځواك د انساني ذهن د داخلي قوت په بشپړ اظهار پورې اړه لري- د دغه اظهار د بېلا بېلو طريقو جاج هم پکښې اخست شوے دے- لکه چې سترګې اوغوږونه دانساني ذهن

دننه راخلاصېدونکي دروازې دي او دبهر معلومات ذهن ته راوړي ، هم دغه راز د انسان ژبه يوه داسي دروازه ده چي معلومات له ذهن څخه دباندي ترې وړل کيږي- دانسان داخلي قوت د احساس ، فکر او يادانښت (تجربه) په توګه د دۀ په ذهن کي وده کوي او په خارجي دنيا کي يې ژبه د اظهار مُهمه ذريعه ده- ځکه نو پر ژبه هم په لنډه توګه بحث شوے دے-د انسان فکر ، احساس او تجربه تر هغه وخته يوازي د دۀ په خپل ذِهن کي موجود وي تر کومه چي يې دے اظهار ونۀ کړي او تخليق يې د اظهار يو ه غوره طريقه ده- ورسره ورسره ژبه د سترګو ، غوږونو او پوزي په شان په حواسو کي هم شامله ده چي انسان ذايقه يا خوند په محسوسولای شي او بيا د دغي ذايقې پر بنسټ داخلي احساس راپاخيږي چي په تخليقي عمل کي مهم ځای لري- د دې کتاب په وروستۍ برخه کي پر تخليق ، تخليقي محرکاتو ، تخليقي نفسياتو ، تخليقي عمل او تخليقي معيار باندي بحث شوے دے ، ولي چي تخليق د فکر ، احساس او تجربې پر بنسټ د نظر د زاويئې يو حاصل دے- تخليقي سلسله همه وخت روانه دوانه وي ، او مورنۍ ژبه د تخليق د اظهار تر ټولو مهمه ذريعه ده-

په دې کتاب کي شامل زياتره مضامين د پښتو اکېډمۍ په مجله ليکني کښې مخکي هم چاپ شوي دي- زۀ دا يقين لرم او په وارو وارو ټينګار ورباندي کوَم چي د حالاتو بدلون د ټولني فکري

تناظر وربدلوي- چونکي په دې سيمه کي په تېزي سره حالات بدليږي ځکه نو د ساينسي ، نفسياتي او فلسفيانه علمي بحثونه ګنجايش پکښې وينم او په ساده او آسانه عبارت کي پر دغه مشکل ټاپيك يو بل کتاب 'انساني ذهن او تخليقي تنده' ستاسو په وړاندي په دې هيله ږدم چي ويې لولئ

ډاکټر باقي دُراني

کوټه

## اخځليك


1. برټرېنډ روسل ، The Analysis of Mind ،
يعني 'د ذهن تحليل'روټلېج (Routledge) لندن ، ۱۹۹۲
2. لېنګر سوسنې ، Mind:An Essay on Human Feeling
يعني' ذهن: پر انساني احساس يو مضمون' دوه ټوکې ، ۱۹۶- ۱۹۲
3. ډاکټر باقي دراني ، 'پښتانۀ د تهذيب په څپو کي' صحا ف نشرياتي موسسه کاسي روډ کوټه ، ۲۰۰۸
4. ډاکټر باقي دراني ، 'دفکر ټال' صحا ف نشرياتي موسسه کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۳
5. احمد شاه بابا ، 'دلوی احمد شاه بابا دېوان' (دېوانِ هرا) تر تيب د معصوم هوتك ، صحاف نشرياتي موسسه ، کاسي روډ کوټه ، ۲۰۰۹
6. سويشر کلېريس ، ' البرټ آئين سټاين (Albert Einstein) '
ګرين هېون (Greenhaven) ، ۲۰۰۲

7. پالسن فرېډريك ، ’ امانو وېل كانټ ؛ د دهٔ ژوند او نظريه ‘

(Paulsen, Friedrich. Immanuel Kant, His Life and Doctrine)

اېنگر ۱۹۶۳

8. ريچرډ رورتي Contingency, Irony, and Solidarity (1989) Objectivity, Relativism and Truth:Philosophical Papers Vol.1

ويرجينيا ، ۱۹۹۱ -

* * *

# انساني ذهن

ذهن (Mind) د مادي دِماغ (Brain) د هغه پټ غېر مادي صلاحيّت نوم دے په کوم چې انسان د زمان ومکان د ادراك سره سره د خپل ماحول مشاهده کوي ، په یاداښت کي يې ساتي ، پلټي يې او فېصله وربانديِ کوي[1]- د دۀ احساسات ، جذبات او خواهشونه واړه په دغه عمل کي برخه لري- لکه چې روح د انساني بدن څخه جُدا خپل يو بېل وجود لري همدغه شان انساني ذهن له دماغ څخه بېل څیز دے- دماغ يو مادي څيز دے چې له هره اړخه يې په آساني مشاهده او مطالعه کېدای شي خو ذهن غېر مادي دے او لويه برخه يې پر فکر ، احساس او یاداښت مشتمله ده- فکر يې تر ډېره حده شعوري څيز دے او د احساس لويه برخه يې لاشعوري ده- ياداښت يې د تېرو وختونو تجربه ده چې د شعوري هلو ځلو او لا شعوري وارداتونو تر منځ توازن پيدا کوي-

دماغ د هر انسان په کوپړۍ کي دننه پروت يو نازك غوندي اندام دے چې خپل يو بېل مادي شکل او جسامت لري- په آساني

کتل کېدای شي ، تَلل کېدای شي او د بېلا بېلو برخو مشاهده اومطالعه يې هم ممکنه ده- د انساني بدن د ټولو نورو اندامونو کنټرول په همدغه دماغ پوري اړه لري- د ژوندانهٔ په سفر کي پښې ، لاسونه ، سترګي ، غوږونه ، ژبه او همدغه راز نور ټول اعضا د دماغ په ذريعه خپل خپل کار تر سره کوي- خو انسان ځينې داسي کارونه هم کولای شي چي وضاحت يې په مادي دماغ سره په آساني نهٔ شي کېدای ، لکه چي فکر کول ، زدکړه کول ، په يادابښت کي ساتل ، تخليق کول ، خوب ليدل او داسي نور ډېر څهٔ- دغه کارونه په ذهن کيږي او ذِهن په مادي دماغ کي دننه هغه غېر مادي جوهر ته ويل کيږي په کوم چي انسان د ژوندانهٔ ډېر اوچت فکري ، عقلي او تخليقي کارونه تر سره کوي- په عمومي توګه موږ وينو چي ځوك قبايلي ذهن لري ، ځوك سياسي ، ځوك ساينسي او ځوك مذهبي- همدغه راز ځينې کسان د تخليقي ذهن خاوندان وي- دغه تخليقي ذهن هغه ذهن دے چي په وارو وارو تخليقي کار ترې اخست کيږي او مېلان يې په همدغه خوا وي-

لکه چي په ځرګندون نمبر ۱ کي ښکاري ، د انسان د سر په کوپړۍ کي دننه د دهٔ دماغ پروت دے- دا چونکي يو ډېر مُهم او نازك غوندي اندام دے ځکه نو فطرت د هډونو په کلَك خول کي دننه ساتلے دے- دا خپل بېل ساخت ، شکل او وزن لري ځکه نو په هره توګه يو مادي څيز ګڼل کيږي- انساني دماغ دساخت په لحاظ پر دوو برابرو برخو وېشلے دے ، يوه ښۍ او بله کينۍ- دغي دواړي




ځرګندون نمبر ۱ دانساني دماغ ، ذهن او نفس بېلا بېلي برخي

حِصې يوه له بلي سره نښتي دي او تر منځ يې بې شمېره نرۍ‌نرۍ تنګي دي چي دواړي خواوي سره تَړلي ساتي- د دماغ هره حصه بيا په څو خاصو شېلو ، پرخلورو بېلا بېلو څنډو وېشلې ده او دهري برخي يې خپل کار دے- مخۍ برخه يې شخصيت ، حيا ، جذبه ، او ټولنيز خويونه کنټرولَوي- وروستۍ برخه يې دنظر او د سترګو د ديد د نظام مرکز دے- برّه خوا يې د ژبي ، تعمير او شمېر يا حساب نظام تر

کنټرول لاندي ساتي- په لره خوا کي يې د اورېدلو ، بُويَولو او توازن ساتلو مرکزونه دي- دغه ټولي څلور برخي په ګډه هم څو کارونه تر سره کوي - د بېلګې په توګه د دماغ ښے اړخ د بدن دکيڼي اړخ حرکت او کار کنټرولَوي- ستر انساني خويونه لکه بصيرت ، تخَيل ، آرټ او موسيقي د دماغ په همدغه ښي طرف کنټروليږي- د دماغ کيڼے اړخ د انساني بدن د ښي لاس او ښې پښې حرکت کنټرولوي او ورسره ورسره ګائېدل ، ليکل ، حساب کول ، استدلال ، او ساينسي هنر هم تر ډېره حده د دماغ په همدغه کِڼي اړخ کټروليږي- د انساني دماغ جوړښت په ظاهره تر ډېره حده حېواني دماغ ته ورته دے خو دا تر حېواني دماغ په وزن دروند او په ګچه غټ دے- په شکل او مادي جسامت کي يې د ډېرمماثلت سره سره توپير هم په آساني ليدل کېدای شي-

انساني ذهن څۀ ظاهري شکل يا جسامت خو نۀ لري بلکي په همدغه دماغ کي دننه د کار کولو يو مخفي صلاحيت دے چي انسان تر نورو مخلوقاتو افضل په ښکاري- په ذهن کي د فکر احساس او يادابښت سره سره نور هم ډېر څۀ شته- د دنيا تر ټولو خلګو ذهين کس ، په خپل ټول عمر کي ، د خپل ذهن د دغه مخفي صلاحيت لسمه برخه لاهم په استعمال کي نۀ شي راوستلای- يو کس د خپل فطري مېلان په ترځ کي د دغه پټ صلاحيت يوه حصه په کار راولي او بل يې بيا څۀ بله حصه- انساني ذِهن د نورو ژونديو خزندګانو او ځناورانو له ذهنونو څخه ډېر بېل دے- نور ځناوران چونکي له ذهن څخه هغومره کار اخلي کوم چي د دوی ضرورت وي

ځکه يې نو فطري ذهني صلاحيت هم دغومره محدود وي- دغه مخفي صلاحيت په خزندګانو او ځناورانو کي هم يو رنګه نهٔ وي بلکي بېلا بېل ځناوران مختلف ذهني صلاحيتونه لري- د بېلګې په توګه لېوهٔ او سپې په ذهن کي د 'بوی' د ادراك صلاحيت تر انسان هم زيات لري- دا ځکه چي دوی د خپل دُښمن او خپل شکار پته په همدغه صلاحيت په آساني لګوي-

په انساني ذهن کي د کار کولو بې شمېره پټي خزانې دي- دا يو بېل کاينات دے چي پلټنه يې دغومره ناممکنه ښکاري لکه دکاينات تسخير- دا ځکه چي انسان په ژوندون کي ترې بې شمېره تخيّلي او تخليقي کارونه اخلي- د انسان ذهانت، برداشت، يادانښت، فکر، احساس، توَجه، جذبه، خواهش، ادراك، اخلاق، بصيرت، يقين، اراده، مينه، نفرت، انصاف او داسي نور اعلیٰ انساني ارزښتونه ټول د دهٔ په ذهن پوري اړه لري- چونکي دلته بحث پر تخليقي تنده دے او دا يو خاص احساس ګڼل کيږي چي تړاؤ يې د لاشعور سره سره د يادانښت او تجربې سره هم دے- يعني دغه احساس د يوې وقوعې تر اثر لاندي، د يادانښت او فکر په موجودګي کي د معقوليت پر بنسټ يوخاص توازن پيدا کوي چي د تخليق موجب ګرځي- ځکه نو زهٔ د انساني ذهن دغه درې فېکلټۍ سره پرتله کوم چي پر بنسټ يې د خلګو فکري تربيّت ممکن شي- د خلګو فکري تربيّت ځکه ضروري ګڼم چي په ټولنه کي معقوليت پېداشي- معقوليت هغه حقيقت دے چي د استدلال په قوت په

ټولنه کي اعتدال را پاڅوي او د سماجي انصاف لاري ټاکي- د معقوليت تقاضا داده چي په ټولنه کي د خلګو و ژوندانۀ ته تر مادي ګټو ډېر زيات اهميت ورکړل شي ، ولي چي ژوندون يو داسي نعمت دے چي تر هر څۀ خوږ ، ښائسته او اعلیٰ دے- کله چي د نظر زاويه سمه شي نو بيا سړے ځان د ټولني يو لازمي جُز ګڼي او د دې حقيقت بشپړ اظهار کوي چي دے خپل وجود د ټولني د بقا په خاطر هر کله قربانولای شي-

دماغ يوې خوا ته د ټول بدن باچا دے او بشپړ کنټرول ورباندي لري- بلي خواته پکښې يو داسي قوت هم موجود دے چي د ذِهن په نامۀ يادېږي- خيال ، فکر ، احساس ، يادابښت او نور ډېر څۀ په همدغه ذهن پوري اړه لري- په نفسياتي توګه ذهن د شعور ، زېر شعور او لاشعور څخه جوړ دے- انساني ذهن څۀ داسي خاصيتونه هم لري چي سړے له نورو مخلوقاتو بېل او ممتاز په ښکاري- د بېلګې په توګه تخليق کول يوازي د انساني ذهن کرشمه ده بل په هيڅ يوۀ ژوندي شيز کي نۀ ليدل کيږي- د ذهن تړاو يوازي د تخليق سره نۀ دے بلکي موږ په شعوري او يا بيا په غېر شعوري توګه په خپل ژوند کي نور هم ډېر بېلا بېل کارونه ترې اخلو ، خو دلته يې د موضوع په مناسبت پر تخليقي اړخ زور ورکړ شوے دے- دا اړخ يې فلسفيانه او نفسياتي[2] دواړي برخي لري چي لنډيز يې د تخليقي تندي وضاحت لره ښخي ضروري ګڼم- نفسيات تر نولسمي پېړۍ پوري د فلسفې يوه مهمه څانګه وه خو وروسته يې ساينسي بڼه

خپله کړه- اوس د مشاهدې او تجربې پر بنسټ په انساني ذهن کې د بېلا بېلو وقوعاتو پلټنه کوي او غوره نتيجې ترې راباسي- فلسفه د تجربې پر بنسټ د انساني ذهن مطالعه کوي او پر عقلي استدلال يې د ځينې پېچلو مسئلو وضاحت کوي- که څۀ هم اوس دا دواړي جُدا جُدا علمي شعبې دي خو د انساني ذهن په اړه پر ډېرو ځايونو فلسفه او نفسيات يو په بله شکېل ښکاري- اوس لا هم پر يو شمېر اړو ذهني مسئلو دا دواړه بې بسه غوندي ښکاري- ځکه نو د انساني ذهن په حقله ترلاسه شوي ټول معلومات په دې دور کې هم حتمي نۀ شي ګڼل کېدای خو دا يو ځلاند تاريخي پسِ منظر لري :

په شپاړسمه عيسوي پېړۍ کې د انګرېز فلسفي جان لاك[3] د انساني ذهن د شعوري برخي په اړه دا نظر ؤ چې کوم څۀ زموږ په خپله تجربه کې خوندي دي په اصل کې هماغه مو شعوري پنګه ده- د دۀ په خيال چې احساسات کوم معلومات د يادابښتونو په مرسته راغونډَوي او بيا تصوّرات او خيالات ترې ترتيب اخلي هم دغه د يو کس شعور دے- له هغه وخته راهيسي د انساني ذهن په اړه په نړۍ کې بېلا بېل بحثونه دوام لري- نامتو جرمن فلاسفر امانوېل کانټ[4] هم د انساني ذهن په جوړښت کې وشعور ته ډېر اهميت ورکړے ؤ-

په اولسمه عيسوي پېړۍ کې فرانسوي فلاسفر ريني ډېکارټ يا ډېسکارټس[5] د ذهن او بدن مسئله (Mind-Body Issue) لومړے ځل په تېکير سره څېړلې وه- دۀ په دغه اړه بېلا بېل سوالونه را اوچت کړي وو- يو بُنيادي سوال يې دا ؤ چې آيا ذهن مادي څيز

دے او که غېر مادي؟ بل سوال يې دا ؤ چي د انساني ذهن څۀ طبيعي حېثيت شته هم او که نۀ؟ درېيم مهم سوال يې د شعور په اړه ؤ چي آيا پر علمي سطحه د انساني ذهن احاطه کېداي هم شي او که نۀ؟ د دۀ استدلال تر ډېره حده پر همدغو سوالونو وو- وروسته دے په دې نتيجه رسېدلے ؤ چي د هر څيز يو طبيعي (فيزيکل) اړخ دے او بل يې ذهني يا روحاني اړخ دے- طبيعي اړخ يې بدن دے چي کتل کېدای شي، تَلل کېدای شي، ګچه کېدای شي او له يوۀ شکل څخه په بل کي بدلېدلای هم شي- د څيزونو ذهني يا روحاني اړخ داسي دے چي نۀ خو په څۀ مادي تول تَلل کېداې شي او نۀ څۀ بدلون پکښې راتلای شي-

په نولسمه پېړۍ کي بيا د جرمني يو بل نامتو علمي شخصيت جان فرېډ رك هربرټ د انساني ذهن په جوړښت کي و شعور ته نور هم مرکزي حېثيت ورکړے ؤ- دے هغه فلاسفر ؤ چي په انساني ذهن کي يې د خيالاتو او تصوراتو د را پاڅېدلو پر مېکېنيزم بحث کاؤ- د دۀ په نيز د فکر پختيا او د احساس شدت په انساني ذهن کي دوه داسي خاصيّتونه دي چي خيالات او تصورات ورباندي وده کوي- دۀ پر دې هم ټينګار کاؤ چي دا دواړۀ يو پر بل انحصار سره لري- جان فرېډ رك هربرټ به دا هم ويَل چي تصوّر د حقيقي حالت يعني شعور څخه پېل کوي خو ورو ورو و جبلي حالت يعني لاشعور ته هم ور داخلېږي- د انساني ذهن په اړه همدغه راز بحثونو تر ډېره وخته دوام لارۀ- ځيني پو هانو به انساني ذهن ته په مادي

نفسياتي نظر کتل او ځينو به بيا ورته په غېر مادي طبيعاتي نظر- د نولسمي پېړۍ په وروستۍ برخه کي د انساني دماغ، ذهن، او تخليقي ارتقا په اړه د نامتو فرانسوي فلاسفر هنري برګسان[6] فلسفيانه بحث ډېر ګټَور ؤ- د دهٔ مهم کار وروسته په کال ۱۹۰۷ کي په کتابي شکل کي د"L'Evalution Créatrice "يعني تخليقي ارتقا په نامهٔ چاپ شوے ؤ- په دغه کتاب کي پر تخليقي ارتقا په تفصيل سره بحث شوے دے- دا کتاب ورو ورو بيا د نورو ژبو په شان په انګرېزي کي هم د Creative Evaluation په نامه ترجمه شو -

په ۱۹۱۹ کي برټرېنډ روسل[7] د انساني ذهن پر تحليل يو شمېر لېکچرز ورکړل او په دغه اړه يې ډېر مهم حقايق مخته راوړل- د مادي نفسياتي نظر او غېرمادي طبيعاتي نظر تر منځ يې توازن پېدا کړ- دا لېکچرز په ۱۹۲۱ کي د لندن څخه چاپ شول- په هر حال دا تاريخي پس منظر د انساني ذهن په بحث کي د شعور او لاشعور اهميت ښکندوي چي يوې خواته په جديد دور کي د نفسياتو ډېر مهم موضوعات دي او بلي خواته يې تړاو د تخليقي تندي سره هم دے- لنډه دا چي اوس د انساني ذهن په حقله درې بېلا بېلي نظريئې دي:

۱- د دوو عناصرو نظريه[5] هماغه نظريه ده چي فرانسوي ساينسدان ريني ډېسکارټس په اولسمه پېړي کي وړاندي کړې وه- لکه مخکي چي يې ذکر وشو، ددهٔ په نظر د نړۍ د هر څيز دوه اړخونه دي، يو يې طبيعي او بل يې ذهني يا روحاني اړخ دے- طبيعي اړخ

يې بدن دے چي له يوۀ شكل څخه په بل كي بدلېدلاى شي- د بېلګې په توګه د وسپني څخه چاقو يا بيا په بېل شكل چيټك هم جوړېدلاى شي او همدغه راز انساني بدن تر مړيني وروسته په خاوره كي په بېلا بېلو اجزاوو بدليږي- خو د ځيزونو ذهني يا روحاني اړخ بدلېدونكے نۀ دے- روح چي كله له بدن څخه بهر شي نو بيا په هيڅ يوه توګه هم بېرته بدن ته نۀ راداخليږي او نۀ بيا بدن په ځۀ بل روحاني يا ذهني قوت بېرته كار پيلوَلاى شي- دغه دواړۀ عناصر په ژوند كي پر هره سطحه يو له بله سره دا شان پيوند ، پيئلي او پيوسته دي چي بېلېدل يې ناممكن دي ، خو د روح تر الوَت وروسته په يوه توګه هم پيوند كيږي نۀ- دغه نظريه تر اوسه لاهم د يوې مهمي نظريې په توګه منل كيږي-

۲- د يوۀ عنصر نظريه[8] په اتلسمه عيسوي پېړۍ كي د آيرلېنډ يوۀ فلاسفر جارج باركلې وړاندي كړې وه- د دۀ په فكر په كاينات كي بس هم يو داسي عنصر دے چي هر څۀ ترې ترتيب شوي دي او هغه ذهني يا روحاني عنصر دے- دے د هيڅ يوۀ طبيعي يا فيزيكل عنصر وجود منلو ته تيار نۀ ؤ- د دۀ په فكر دطبيعي ځيزونو بحث يوازي د تجرباتو د غوره ترتيب ترحده صحي منل كېدلاى شي كنې په حقيقت كي دغه هم د هغۀ روحاني عنصر بېل صورتونه دي- دے چونكي يو مذهبي ايمپېريسيسټ ؤ ځكه دغه نظريه هغه وخت هم تر مذهبي حلقې دباندي نۀ منل كېده-

۳- د ماديت نظريه په اصل كي د اوسني وخت د يوۀ عنصر

څۀ بېله غوندي نظريه ده چي هر څۀ طبيعي يا مېټريئل ګڼي- نولسمه او شلمه پېړۍ د ماده پرستۍ پېر دے- ماده پرستان انسان هم د نورو مادي څيزونو په شان د ماديت په يوه تنګه دائره کي قېد ساتل غواړي- دوی واړۀ ژوندي څيزونه طبيعي ګڼي او د روحاني عنصر هيڅ يوګنجايش هم نۀ پکښي پرېږدي- ددوی په فکر انسان هيڅکله هم ترطبيعي سطح اوچتېدلای نۀ شي ولي چي د معنوي سطحي ګنجايش خو پخپله د روحاني عنصر تقاضا کوي او دغه عقيده په ماده پرستانو کي نشته-

پر عالمي سطح د ماده پرستانو د نظريئې د صحت په اړه څۀ معقول استدلال نۀ دے مخته راغلے- دجارج بارکلې په فکر چونکي د مادې خپل حقيقت په انساني مشاهده او تجربه پوري اړه لري او تر دغه مشاهدې وروسته چي کوم خاص احساس را پاڅيږي د مادې پېژندګلونه په همدغه ممکنه ده ، ځکه نو بې له څۀ مشاهدې د مادې وجود نشي منل کېدلای- په بله معنا که مشاهده نۀ وي نو بيا دمادې وجود هم نشته- د همدغه دور يو بل فلاسفر کانټ د ماده پرستۍ پر ضد خپل دلايل لري- دۀ د احساس په اړه نور وضاحت هم کړے دے- د دۀ په نېز په انساني احساساتو کښې څۀ فطري ترتيب له لويه سره نۀ وي بلکي د احساس په نتيجه کي د راپاڅېدلو خيالونو ترتيب اصل څيزدے او انساني ذهن داحساساتو په نتيجه کي پېدا شوو فکرونو ، ګمانونو او خيالونو ته يو خاص نظم او ترتيب ورکوي- معنا دا چي کوم څيز په سترګو ليدل کيږي هغه په اصل کي د ذهن

تخليق دے ځکه نو د انسان په اړه ماده پرستي څۀ داسي حتمي نظريه نۀ ده چي پرستش يې وشي بلکي د دوو عناصرو نظريه په منطقي توګه غوره نظريه ښکاري - ولي چي دا نظريه د انساني تشخص او روحاني بقا بشپړ وضاحت کولای شي-

په نفسياتي توګه[9] انساني ذهن له ازله تر ابده د پيوسته زدکړي په عمل کي دے- دعلم دايره يې روځ په روځ پراخيږي لګيادہ او په روَيه کي يې په تواتر سره بدلون را روان دے- خوی او بوی يې اوس آغه نه دي پاته لکه چي د اولنيو خلکو وو- زدکړه يوازي په مکتب او مدرسه کي نۀ کيږي بلکي انسان ټول عمر څۀ نۀ څۀ زده کوي لګياوي- ماشومان تر مدرسې او سکول لمخه هم ډېرڅۀ زده کوي - دوی پل اخلي ، خبري زده کوي ، خاندي ، ژاړي او د لوبو کولوهلي ځلي کوي- د دوی زدکړه تر ډېره حده په موروثي مېلاناتو پوري اړه لري چي تړاو يې په هر حال له ذهن سره دے- ورو ورو يې په دغه عمل کي جِبلتونه ، احساسات ، عادتونه او حافطه ټول برخه اخلي- زدکړه يو پيوسته بهاند عمل دے چي هرکله روان دوان وي- د عمر او تجربې سره ورو ورو د انسان خويونه هم وربدلوي لګيا وي- د زدکړي پيل له کوره کيږي چيري چي ماشوم له مور ، پلار ، وروڼو او خوېندو څخه ډېر څۀ زده کوي- د کهول څخه ماشوم ژبه زده کوي ، دخوراك ، څښاك او پوښاك اداب ترې زده کوي د خپلوۍ او ميني احساس ترې اخلي- اولنۍ روحاني تربيت يې همدغه کهول کوي- کله چي د ماشوم پوهه زياتيږي نو بيا له مور او پلار څخه بېلا بېل

سوالونه کوي- د دغو سوالونو کوم ځوابونه چې دے له هغوی نۀ اوري هماغه يې په ذهن کې خوندي کيږي چې وروسته يې بيا د راتلونکي ژوند هينداره شي- کور او کهول د ماشوم د شخصيت په جوړښت کې ډېره لويه برخه لري- کورَنے تربيت د انسان په راتلونکي ژوند کې د دۀ په شخصيت کې له ورا ښکاري- د ژوند بېلابېلو ارزښتونو له کهوله دماشوم وشخصيت ته ورو ورو را اوړي- دغه خانداني ارزښتونه د دۀ په ژوند کې بيا يو خاص مقام مومي او دے په پېژندل کيږي- کله چې ماشوم له کوره مکتب ته تګ راتګ پېل کړي نو يې بيا د سکول او مدرسې تعليم او تربيت په روَيه کې ورو ورو څۀ نور بدلون هم راوړي[10]- د بېلا بېلو استاذانو تر تربيې لاندې يې د نورو ماشومانو سره ناسته او ولاړه کيږي- هغه څۀ ترې زده کوي ، کوم چې دۀ په خپل کور کې نۀ وي زده کړي- معنا دا چې په مکتب کې دماشوم علم ورو ورو نور زياتيږي او په شخصيت کې يې په تواتر سره غوره بدلون راځي- په سکول کې دے د ليك لوست سره سره د صبر ، صفائي ، نظم او رواداریٔ غوندې نورو ډېرو غوره څيزونو زدکړه کوي - د دغې زدکړې اصل مرکز انساني ذهن دے-

ټولنه او د خواوشا ماحول د خلګو پر ذهن بېلا بېل اثرات کوي - دغه اثرات يې د انسان د شخصيت په جوړښت کې مهم رول لوبوي او ورو ورو بدلون پکښې راوړي[11]- د ټولنې تر دغواثراتو لاندې د فرد سر د معاشرې په غوره ارزښتونو ، دود ، جهاندارئ او سرېتوب خلاصيږي- دے د ښۀ او بد توپير په همدغو ټولنيزو اصولونو کوي-

که په ټولنه کي اخلاص وي ، مينه وي ، ورور ولي وي ، امن وي ، مرسته وي ، ښکلا وي ، خوشحالي وي ، تعليم وي ، دليل وي او اعتدال وي نو به د خلکو پر ذهنونو مثبت اثرات پرېږدي- او که چيري بُغض وي ، عِناد وي ، تربورګلوۍ وي ، سرکښۍ وي ، قتل وغارت وي ، بدۍ وي ، نفرتونه وي ، اغوا ګاني وي ، غلاوي وي ، او نشې وي نو به په دغه ماحول کي همدغه څۀ زده کيږي- که په هېواد کي د قانون حکمراني وي ، امن وي ، انصاف وي ، نظم او ضبط وي ، آزادي وي ، جمهوريت وي او د معاش لاري ټولي خلاصي وي نو به يې د وګړو د ذهنونو د ښۀ تعمير په لار کي هيڅ يو خنډ هم نۀ وي-

انساني ذهن د يوۀ ساکت غوندي څيز په بڼه نه دے بلکي په تواتر سره بدليږي- دغه بدلون يې تر ډېره حده په ليك لوست ، تربيّت او تجربه پوري اړه لري- ليك او لوست ورو ورو د انسان په رَويه کي بدلون راولي- فکر يې پختيا په مومي ، د خيال الوت يې تر آسمانه په رسي ، د احساس شدت يې په تخليق آماده کاندي- يوازي ليك لوست نۀ ، بلکي ورسره ورسره د دۀ ټولنيز ماحول هم په دغه بدلون کي بشپړ ګډون لري- قام ، قبيل ، تاريخ ، تهذيب اوکلتور د دۀ د ذهن په ژورتيا کي هر ځای ورسره مله وي- کله چي يې فکر پختيا ومومي نو د عالمي حالاتو په تناظر کي هم ډېر څۀ زده کوي- ځکه نو په ساينسي توګه زدکړه د انسان په خوی کي د غوره بدلون راوړلو صلاحيت دے نۀ چي يوازي د علم حصول-

چونکي زدَکړه يو مسلسل ذهني عمل دے او ټول عمر د

انسان سره مله وي ځکه يې نو له اهميّته انکار نۀ شي کېداى- نفسياتي توضيح يې دا ده چي دا ټول عمل د انسان په يادانښت پوري اړه لري او يادانښت يې د عمر د تجربې بل نوم دے چي د کس په خوى کي ورو ورو بدلون راوړي- د زدکړي خپل بېلا بېل مدارج دي- دا د بېخي ساده غوندي عمل څخه پېل کوي او ورو ورو تر يوۀ ډېر پېچلي نظام پوري ځان رسوي- د زدکړي پېل له يوۀ ساده غوندي احساس څخه کيږي ، لکه ليدل يا اورېدل- دغه احساس بيا د انسان په يادانښت يا حافظه کي خوندي شي- ذهن يې د پخوانۍ تجربې په رڼا کي پلټنه وکړي او په نتيجه کي يې په روَيه کي بدلون راشي- د بېلګې په توګه ، د يوۀ ماشوم د ډاکټر له کلېنك څخه ځکه بېره کيږي چي دۀ ته په کلېنك کي د ستني يا پېچکارۍ د درد تجربه شوې وي- درد يې لومړے احساس وي چي د تجربې په بڼه د دۀ په حافظه کي خوندي شي- په نتيجه کي يې له کلينك څخه بېره د روَيې هغه بدلون دے چي موږ يې ليدلاى شو- ستن يا پېچکارۍ ليدل او درد يې احساسول اولنۍ احساس ۆ خو دکلينك ليدل يو بېل فطري احساس دے چي د تېري تجربې په رڼا کي د بېري يا خوف په توګه را پاڅېدلے دے- دا دوهم احساس يې له اول سره تړلے دے- که يې لومړۍ تجربه نۀ واى نو به يې له کلينك څخه بېره هم نۀ کېده- دا ټول عمل په ذهن کي د پلټني د يوۀ مربوطه نظام سره تړاؤ لري چي د کواګنېشن يا ادراک په نامۀ ياديږي- همدغه يې د غور و فکر وړ ټکے دے او نور تفصيل به يې مخته راځي-

په اوسني ساينسي دور کي د انساني ذهن لوی شمېرمهم خاصيّتونه تر ډېره حده واضحه کړل شوي دي- د دغو خاصيّتونو يو لنډېز ستاسو په وړاندي ځکه ږدم چي د موضوع لږ غوندي وضاحت په وشي:

۱- **عدم وجوديت** د انساني ذهن اولنۍ مُهم خاصيت دے- ولي چي دا د انساني دماغ په رنګه څۀ خاص مادي وجود نۀ لري بلکي په يو کس کښې دننه د فکر کوَلو او کار کولو بلکل مخفي صلاحيت دے[1] چي انسان د خدای تر نورو ټېلا ټېلو مخلوقاتو افضل او بېل په ښکاري- هرکس د خپل فطري مېلان په ترځ کي د دغه پټ صلاحيت يوه خاص برخه په کار راولي خو دا ادراك وکمو خلکو ته وي چي ذهن چرته وجود لري؟ او د کار کولو طريقه يې څۀ ده؟ البته د خپلو خاصيتونو په وجه تقريباً هر کس په خپل درون کي د ذهن موجودګي احساسولای شي-

۲- د **داخلي موجودګۍ** خبرتيا هم د عدم وجوديت سره سره د انساني ذهن يو ټېل خاصيت دے چي هرڅوك يې په خپل داخل کي احساسولای شي- دا ښايي چي دانساني ذهن ترټولو نورو ټېلا ټېلو خاصيّتونو مهم خاصيت وي د کوم په برکت چي هر کس په ځان کي دننه په خپلو اِرادو، فکرونو، احساساتو، خواهِشونو، جذبو او يادانښتونو بشپړه آګاهي لري او په دې ښۀ خبر وي چي د دۀ په ذهن کي څۀ روان دي- د خپل ذهن په حال خبرتيا يواعلىٰ انساني خاصيت دے چي يوکس له نورو مخلوقاتو ټېل په ښکاري-

۳- **اراده** د انساني ذهن هغه مهم خاصيت دے دکوم په ذريعه چي دے د حق او فرض ترمنځ توازن ساتلای شي- د حق دپاره پاځېدل او بيا عملي هلي ځلي کول د انسان په اراده ممکن دي ، ورسره ورسره د خپل فرض ادراك هم د ارادې د تشکيل مهمه برخه ګڼل کيږي-

۴- **انتخاب** د انساني ذهن يو داسي قوت دے چي هر کس د ښه او بد تميز په کوےشي - دے په خپلو خيالونو کي همه وخت د حق او باطل تر منځ د توپير په هلو ځلو وي او د ارادې په شاني د نورو ذهني صلاحيتونو سره سم د انسان د بقا په هلو ځلو کي مرکزي کردار ادا کوي- دانتخاب دغه قوت د انساني ذهن يو اعلیٰ خاصيّت دے چي په بل هيڅ يو ژوندي څيز کي نه شي ليدل کېدای- د همدغه انتخاب په قوت انسان د خپلي موخې اوذمه وارۍ احساس ژوندے ساتي- لکه چي په کتاب دفکرتال کي بحث ورباندي شوے ؤ د انسان تشويش په اصل کي د څۀ انتخاب دنۀ موجودګۍ احساس وي او يا بيا د انتخاب دجواز په اړه وي-

۵- **آزادي** هم د انساني ذهن يو بېل او ممتاز خاصيت دے چي هر کله د اِرادې او انتخاب سره مله وي او په ګډه ستر انساني ارزښتونو ته دوام ورکوي- انسان د عقل او شعور د فطري قوت اظهار د همدغي آزادۍ په ذريعه کوي- دے چونکي د آزادي اِرادې خاوند دے ځکه نو د هغه څۀ انتخاب هم په آزاده توګه کوي ، کوم چي دے يې معقوله ګڼي- د آزادي اِرادې په قوت دے کله کله د

سرمستۍ او سرکښي ترحده هم لاړشي- انسان هر کله د خپل آزاد او ځانګړي انتخاب په ذريعه د ژوندانهٔ و بېلا بېلو او پېوسته هلو ځلو ته دوام ورکوي- د انسانيت معيار د کس د آزاد انتخاب او آزادي اِرادې په حساب دے ځکه نو په ژوندانهٔ کي يو انسان له بله څخه هرکله بېل ښکاري- دا د انسان آزادي ده چي دے کله کله دخپلو ټولنيزو حالاتو خلاف بغاوت وکړي او کله خو تر دې حده وي چي د خپل فطرت خلاف هم فېصله وکړي ، لکه چي د ځان وژني يا خود کشۍ فېصله يوازي انسان کولای شي- د آزادۍ دغه قوت په بل هيڅ يو څيز کښي نهٔ ليدل کېږي- ځکه خو د آزادي اِرادې په قوت او آزاد انتخاب په ذريعه انسان تر نورو ټولو مخلوقاتو افضل ګڼل کيږي-

۶- **مقصديت** په ذهني صلاحيتونو کي يو داسي څيز دے چي په رڼا کي يې واړهٔ نور صلاحيتونه په کار راوستل کيږي او د يوهٔ مربوط عقلي سيستم په توګه ، دخاص موخې په ترڅ کي کار کوي- د بېلګې په توګه ، چي کله يوه ټولنيزه پېښه د انسان په داخل کي يو خاص احساس را وپاخوي نو يې تر اثر لاندي دے فکر پېل کړي- ذهن يې د تجربې پر بنسټ د ماحول پلټنه کوي لګيا وي او نتيجه ترې راباسي- ورسره ورسره يې د مقصد تعيُن هم کوي او تر ورَسېدو يې په هلو ځلو وي- دغه خاصيت له انسانه په پرته په بل هيڅ يو څيز کي هم دومره واضحه نهٔ شي ليدل کېدای-

تخليقي تنده د انساني ذهن يو بېل صلاحيت دے چي په نورو مخلوقاتو کي يې مثال نشته- کله چي دے د ماحول تر اثر

لاندي د ټولني درد محسوس کړي نو په همدغه تخليقي تنده يې د اظهار بېلا بېلي طريقې لټوي- يوې خوا ته انساني ذهن په خپل فطري ماحول قناعت نه شي کولاي ځکه نو د نوو نوو تخليقاتو په هلوځلو وي- بلي خواته د انسان نفسياتي جوړښت څهٔ داسي دے چي هر وخت يې په اضطراب کي ساتي او همدغه اضطراب يې په تخليق آماده کاندي- هره روڼ نظم ، غزل ، غميزه ، افسانه ، ناول او لوی شمېر نور تخليقونه داسي کېږي چي په برکت يې انسان له نورو مخلوقاتو بېل ښکاري- انسان دټولني دردمحسوسَولای شي اودغه بېل احساس يې هم د تخليق موجب شي- د تخليق په عمل کي يوازي ادب مُهم نه دے بلکي تعميرات ، مصوّري ، او نور ډېر فنون هم داسي دي چي د انسان په تخليقي قوت پوري اړه لري- د اوسني دورسائنسي ترقي او نوې ټېکنالوژي د انسان د تخليقي قوت نخښي دي- د مشرقي قامونو په نېز د تخليقي عمل لاندينۍ سطح دغه ساينسي او ټېکنيکي ايجادونه دي خو اوچته سطح يې فني ترقي ده- دا ځکه چي ساينسي او ټېکنيکي تخليقونه د انسان د خوشحالۍ دسامان پيدا کولو سره سره د دهٔ د تباهۍ او بربادۍ پېغام هم راوړي- فني صلاحيت د انسان د تخليقي قوت اوچته سطح ځکه ګڼل کيږي چي په ټولنه کي د ترقۍ ، خوشحالۍ او ښايست په حقله د غوره بدلون کار ترې اخست کيږي- همدغه فني تخليقي صلاحيت دے چي انسان په دنيا کي د خدای د تخليقي قدرت واضح مظهر په بلل کيږي- د تخليقي تندي اړه چونکي په انساني ذهن پوري ده ځکه نو

په دغه حقله د ذهن د جوړښت ، هيئت او بېلا بېلو صلاحيتونو جاج اخستل لازمي ګڼم- که څۀ هم د فکر ، احساس ، يادابښت ، زدکړي ، خواهش ، جذبې ، جبلت ، عادت ، عقل ، دانش ، شعور ، لاشعور ، نفس ، بصيرت ، ضمير ، عقيدې ، ژبي ، ادب ، کلتور او روحاني وارداتونو ټولو تړاو د انساني ذهن سره دے خو د موضوع په مناسبت يې دلته بحث د تخليقي تندي په خوا بېرته را اړوو-

تخليقي تنده په انساني ذهن کي يو داسي پېچلے نظام لري چي په آسانه توګه سر پرې نۀ شي خلاصېدای ځکه نو څۀ نۀ څۀ نور وضاحت هم غواړي- چونکي د تخليقي تندي اړه په ذهن کي د فکري نظام په تشکيل پوري ده ځکه يې پلټنه هم د انساني ذهن د ځينو هوډرو برخو د پلټني سره تړاو لري- لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، پر دغه موضوع چي کوم مواد موجود دے ، هغه لا تر اوسه د تخليقي تندي پوره پوره احاته نۀ شي کولای[12]- ځکه يې نو په وارو وارو د جاج اخستلو ضرورت شته چي په رڼا کي يې د هغه پېهم سفر بېلا بېل منزلونه وټاکل شي کوم چي وَ ژوندون ته معنا ورکوي-

تخليق هغه اعلیٰ انساني خاصيت دے چي يو معنوي انسان له بشر څخه بېل او ممتاز په ښکاري- تخليق د تخليق کوونکي په داخلي تخليقي تنده پوري اړه لري چي په نفسياتي توګه يو داسي احساس دے چي بېلا بېل محرکات يې دي او تفصيل به يې وروسته وړاندي کړل شي-

تخليقي تنده په انساني ذهن کي د طلب يو داسي احساس دے

چي د آخري حد تعيُن يې نۀ شي کېداى- د انسان د ځان پېژندني د درو مهِمو عناصرو څخه يو دے- نور دوه يې سعي يا کوښښ او نظريه دي- دغه تنده د انسان د پرمختګ هغه احساس دے چي هرکله يې په پيوسته هلو ځلو خوښ کاندي- که څوک دا وايي چي طلب او سعي خو په نورو ځناورانو کي هم شته نو دا تر يوۀ حده صحي ده - مارغۀ ځالۀ جوړولاى شي او مېږے ترځان دروند بار هم پورته کولاى شي خو تخليق نۀ شي کولاى-

په انساني ذهن کي دننه دتخليقي تندي سره سره خيال او يادانښت دوه داسي مهم اجزا دي چي اړه يې په تخليقي عمل پوري ده- خو د ذهن په دغه پېچلي نظام کي چرته يو بل غېر مرئي او غېر مادي څيز هم شته چي له پخوا څخه د نفس په نامۀ ياديږي- دا د انساني ذهن د هغي برخي نوم دے چي پر شعور ، تحت الشعور او لاشعور مشتمل دے- ځکه نو نفسيات ځان لره يوه بېله علمي څانګه ده چي د نفس پر جوړښت او کړه وړه بحث کوي- د انساني نفسياتو د تخليق سره چونکي ډېر ټينګ تړاو دے ځکه به په راتلونکو پاڼو کي تر يوۀ حده بحث وربانديي کوو- معنا دا چي د نفس ، شعور ، زېر شعور او لاشعور جايزه به په يوۀ بېل څپرکي کښې اخلو- ولي چي که څۀ هم د فکري نظام په تشکيل کي ډېر بېلا بېل عوامل ګډون لري خو د تخليقي تندي تړاو يې د ذهن د هغي برخي سره دے چي د نفس په نامۀ ياديږي او په زياته بيا د لاشعور سره-

پايله يې دا چي انساني ذهن په دماغ کي دننه يو غېر مادي

څيز دے چي څه خاص شکل او صورت نۀ لري خو په خپلو بېلا بېلو خاصيّتونو او صلاحيّتونو په اساني سره پېژندل کېږي- لويه برخه يې پر فکر ، احساس او يادابښت مشتمله ده- فکر يو شعوري څيز دے چي انسان يې په خپله آزاده اراده او غوره انتخاب په کار راوستلای شي- د احساس لويه برخه يې لاشعوري ده او تخليقي تنده تر ډېره حده په همدغه برخه پوري اړه لري- يادابښت يې په اصل کي د تېرو وختونو تجربه ده چي په ژوند کي د انسان د شعوري هلو ځلو او لاشعوري وارداتونو تر منځ خاص توازن پېدا کوي او د تخليق په بڼه يو نوے څيز ترې پېدا کېږي- احساس ، فکر او يادابښت دغسي ذهني صلاحيّتونه دي چي محسوسېدلای شي خو مخامخ نۀ شي ليدل کېدای- يعني مشاهده يې يوازي د يو کس په رَويه کي ممکنه ده- ځکه نو تخليقي تنده د تخليق کوونکي احساس دے او تخليق يې د ردعمل په توګه کېږي-رَويه بيا د دۀ د داخلي ردِعمل نوم دے چي په تواتر سره تر تنقيدي شعور وتلو وروسته په اديب کي ليدل کېږي. ژور احساس لکه درد يا مينه په نفسياتي توګه د دۀ په رَويّه کي بدلون راولي او دخپلو جذباتو په اظهار يې آماده کاندي- فکر يې اثر ترې اخلي او په اظهار کي يې د استدلال په ګچه معقوليت پېدا کوي لګيا وي- د ژوندانۀ تجربه او سماجي حالات يې بيا پر **فکر** اثرات پرېږدي چي په تخليق کښې يې معنا ، ښکلا ، خوند او پختيا راوړي- ځکه نو روّيه د انساني ذهن هينداره ده او د انسان ذهنيت پکښې له ورا ښکاري-

## اخځليك


1- ساونډرز ، ’ډارلېنډ مېډيكل ډكشنري‘ ، شپږويشتم اېډيشن ، ساونډرز كمپنۍ ، فايلوډلفيا ، لندن ۲۰۰۴ —

2- ډاكټر باقي درانی ، ’ تخليق او نفسيات‘ درې مياشتنۍ پښتو مجله ’ ليكني ‘ جلد نمبر ۱ شماره نمبر ۴ ، پښتو اكېډمۍ كوټه ، ۲۰۱۴

3- جان لاك ، An Essay Concerning Human Understanding يعني ’ د انسان پر دانش يو ه مقاله ‘ ، آكسفورډ يونيورسټي پريس ، لندن

4- پالسن فرېډريك ، ’ امانو وېل كانټ ؛ د دهٔ ژوند او نظريه‘اېنګر ۱۹۶۳ (Paulsen, Friedrich. Immanuel Kant, His Life Doctrine)

5- اكروګر ، سټيفن Descartes: An Intellectual Biography يعني ’د ډيسكارټس علمي سوانح ‘ ، آكسفورډ يونيورسټۍ پرېس ، ۱۹۹۷

6- هنري برګسان ، Creative Evolution يعني ’ تخليقي ارتقا ‘ نيويارك ، ۱۹۱۱

7- برټرېنډ روسل ، (The Analysis of Mind) يعني ’د ذهن پلټنه‘ د روټلېج نسخه ، ۱۱ نيو فيټر لېن ، لندن ، ۱۹۹۵-

8- جارج باركلې ، " An Essay Towards a New Theory of Vision" ۱۷۰۹

9- ويلهلم مېكس ونډټ ، ’د فزيالوجيكل سايكالوژي اصولونهٔ ‘ انګرېزي ژباړه The Principles of Physiological Psychology ۱۹۰۴

10- برانزفورډ ، جان او ملګري ، 'خلګ زدکړه څنګه کوي ؟ دماغ ، ذهن ، تجربه او سکول- Bransford, John, and others. How People Learn: Brain, Mind, Experience,and School. National Academy Press, 2000

11- مېزور ، جېمز اي ، Mazur, James E زدکړه او رویه

The Principles of Physiological Psychology Learning and Behavior".

.5th ed. Pearson, 2001

12- موکن هاپټ ، Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious

يعني سيګمنډ فرايډ: د لاشعور پلټونکے ' آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۹

* * *

# فکر

فکر( Thought ) په انساني ذهن کي د خيالونو د څهٔ خاص ترتيب نوم دے- دا منفي هم کېدای شي او مثبت هم- دا هغه بشپړ عمل دے چي تر ليدلو ، کتلو ، لوستلو او اورېدلو وروسته د انسان توَجه ، خيال ، احساس ، پوهه ، يادابښت ، ګمان ، وسواس ، ژبه او قوّتِ فېصله ټول پکښې برخه اخلي- که څهٔ هم فکر د انساني ذهن يو بنيادي عمل دے او عام خلګ ښهٔ پرې خبر هم دي خو د فکري عمل (Thinking ) په اړه د پوهانو نظر يو نهٔ دے- دا ځکه چي فکري عمل يو پېچلے نظام لري او فلسفيانه ، طبيعي ، نفسياتي او ټولنيز اړخونه يې يو له بله بېل دي- دا هر وخت د داخلي احساس او يا د بهرنيو حواسو په نتيجه کي نوي نوي امکانات را پاڅوي لګيا وي- د تجربې په رڼا کي زياتره په خيالي کرښو او تصويرونو د ژوندانهٔ بېلا بېلي زاويئې تر نظر لاندي راوړي- د انسان فکر يو داسي تَخَيُلي کاينات جوړوي لګيا وي کوم چي تر دې لمحه دهٔ پخپله هم نهٔ وي

ليدلے- فکر فيکشن هم کېداى شي او د حقيقت يو ښکلې خيالي خاکه هم[1]- دا د انساني ذهن هغه مخفي صلاحيّت دے چي دۀ ته د نوو نوو تخليقاتو قوت ور بخښي او دے د حېوان څخه بېل او بهتر په ايسي- کله چي فکر د تجربې په رڼا کي د احساس سره يو ځاى شي او د ژوندانۀ د اړو مسئلو د حل په هلو ځلو شي نو بيا عقل بلل کيږي ځکه نو عقل د انساني فکر مثبت اړخ دے چي وروسته به په پنځم څپرکي کښې تفصيلي بحث وراندي کيږي- د انسان ځان پېژندنه[2] ، ويښتيا ، قام ژغورنه ، دين دوستي ، انسانيت او خداى پرستي ټول په فکري توګه د نظر په سمه زاويه پوري اړه لري- کله چي د يوۀ انسان د نظر زاويه سمه شي نو بيا په ژوندانۀ کي اهليت ، ذهانت ، دليل ، عزت او آزادي مهم ګڼي ، نۀ چي خپله ځاني ګټه او تاوان-

فکر د فلسفې مغز دے او له پخوا څخه فلاسفران د فلسفيانه فکري نظام په جوړښت کي کار ترې اخلي[3]- کله چي د فلسفيانه شکوکو په نتيجه کي يو خيال په ذهن کي را وپاځي نو بيا ګمان ، وسواس ، يادانښت ، خواهش او اميد واړه ورسره مله شي او د يوۀ داسي تَخَيُلي شاهکار په جوړښت پېل وکړي چي تر دې لمحه يې شتون نۀ وي- همدغه فکر دے چي په فلسفه کي تر هر څۀ مُهم او محترم ګڼل کيږي- په فکري نظام کي که څوك په ديانتدارۍ سره د خيال تشکيل او تزئين وکړي او د عملي کولو يې معقوله طريقه وړاندي کړي نو بيا د دۀ د مقام تعيُن په کيږي-

لکه چي په څرګندون نمبر ۲ کي ښکاري ، په انساني ذهن کي




ځرګندون نمبر ۲ انساني فکري سايکل

خيال زياتره د يوۀ سوال په بڼه را پاڅيږي- بيا يې په فکري نظام کې دننه له هره اړخه جاج اخستل کيږي- په يادابشت کې د خوندي تېرې تجربې په رڼا کې يې پلټنه کيږي او فېصله ورباندې کيږي- د عمل ورباندې کولو پلان يې جوړيږي او په دغه حقله دخواوشا دماحول په ګڅه معقوليت پکښې را پيدا کيږيي- لکه چې مصوّر د تصوير په بېلا بېلو سانچو کې رنګونو ته ترتيب ورکوي لګيا وي همدغه راز تخليق کوونکے د فکري نظام په تخليقي سانچو[4] کې خيالونو او تصوراتو ته ترتيب ورکوي چې تخليق يې ښکلا په وومومي- يعنې دغه فکري سايکل د نورو بېلا بېلو کارونو سره سره د تخليقي تندې او تخليقي عمل بنسټ هم دے-

خيال د فکر څخه بېل يو ځانګړے معنوي صلاحيت دے چي په انساني ذهن کي را پاڅيږي او هغه څيزونه هم په ليدل کيږي چي په ظاهره د محسوساتو تر دايره وتلي ښکاري- معنا دا چي د فکر بنسټ تر يوهٔ حده پرخيال ولاړ دے او خيال انساني فکر د غېبو سره تړي لګيا وي- ولي چي د محسوساتو تر دنيا په آ خوا يوازي د خيال رسايي شته او ځينې داسي غېبي حقيقتونه هم ليدلای شي چي په بله هيڅ توګه يې تصديق ممکن نهٔ وي- د هر انسان دخيالونو د الوتني خپل بېل کائينات وي- لکه چي د خلګو په رنګونو ، کړهٔ وړهٔ قد وقامت او نور ډېر څهٔ کي توپير ليدل کيږي همدغه شان يې د خيالونو جهانونه جُدا جُدا دي- خيال کله کله د مادي دنيا نه بهر هم تر يوهٔ داسي جهان پوري د غزېدو په هلو ځلو وي تر کومه چي په ظاهره رسېدل ممکن نهٔ وي-

خيالونه کله هم يو شانتي نهٔ وي- دا د بهاندو اوبو په څير همه وخت بهېږي رابهيږي- دغه بهاؤ يې په ډېرو نورو ذهني خاصيّتونو پوري اړه لري- احساس ، ګمان ، وسواس ، يادابښت او پوهه ټول د خيالونو پر صحت اثرات لري- په انساني ذهن کي رابهېدونکي دغه بې شمېره خيالونه کهٔ څهٔ هم زياتره منفي وي خو انساني فکري نظام يې د يادابښت او پوهې په ذريعه زېرکړي اوکم شمېرمثبت يې رابرسېره کړي- بل مثال يې دا دے چي خيالونه لکه پلوشې له انساني ذهن څخه هر وخت راپاڅيږي- لوی شمېر يې د لمر د شغلو په شان چارچاپېره خورې ورې وي- نهٔ يې څوك شمېرلای

شي او نۀ یې بشپړ ادراك وچاته وي- خو کله چي د هينداري په شان يو بل ځيز د دغو شغلو مخي ته راشي نو يې لار وربدله کړي او په بېل انداز وبرېښي- معنا دا چي خيال هلته برېښي کله چي يې د ياداښت (تجربې) او پوهني په هينداره کي د پلوشو سمت وټاکل شي او د خپل شتون احساس ورکړي- دلته لاندي په ځرګندون نمبر۳ کي دخيالونو دپلوشو وضاحت په ځو خيالي کرښو شوے دے چي



ځرګندون نمبر۳ دانساني خيالونو پلوښې

له ذهن څخه چارچاپېره خورېږي- چيري چي د ياداښت او پوهي يوه ذره هم ورسره ونښلي نو وبرېښي- ياداښتونه او زدکړه ددغو پلوشو غوندي انساني خيالونه متاثره کوي او تراشي يې- د خيالونو دغه

پېوسته تراشنه په اصل کي د ښهٔ تخليق بنسټ دے- که څوك دا خواهش لري چي معياري تخليق وکړي نو دي په خپل ذهن کي منفي خيالونه زېر کړي او مثبت خيالونه دي تراشي لګيا دي اوسي- د ښهٔ ژوند راز دادے چي له خپله فکره منفي خيالونه وتښتول شي او مثبت عمل ته ملا وتړله شي-

لکه مخکي چي بحث وربالدي وشو ، انساني دماغ يو مادي څيز دے- خپل يو خاص شکل لري خو د بدن له نورو غوښو څخه يې جوړښت بېخي بېل ښکاري- دا په ظاهره يو ډېر نازك غوندي اندام دے خو د بدن پر ټولو نورو اندامونو بشپړکنټرول لري- لاسونهٔ ، پښې ، سترګي ، غوږونه ، او ژبه ټول د دماغ په ذريعه خپل خپل کار تر سره کوي- خو انسان ځيني داسي کارونه هم کولای شي چي وضاحت يې په دغه مادي دماغ نهٔ کيږي- د دغو کارونو اړه په ذهن پوري ده چي فکر ، احساس ، يادانښت ، شعور او لاشعور ټول پکښې ګډون لري- د انساني فکري نظام په تشکيل کي که څهٔ هم دماغ ، ذهن ، نفس ، فکر ، احساس او يادانښت واړهٔ ګډون لري خو اصل رول پکښې د' کاګنيشن' يا ادراک دے- دا په ذهن کي دننه يو بشپړ فکري نظام دے- ذهن تر دغه فکري نظام لاندي د سترګو ، غوږونو ، پوزي ، خولې او پوست غوندي نورو حواسو څخه اثرات (سيګنلز) اخلي ، پلټي يې او بيا يوکس وينښوي ، جذبات يې راپاروي او په نتيجه کي يې دغه کس حرکت کوي ، خبري کوي او عملي ګامونه اخلي- ځکه خو انسان حرکت کولای شي ، ګاڼېدلای شي ،

تخليق کولای شي ، خوب کولای شي او هم خپل بېلابېل جذبات ترکنټرول لاندي راوستلای شي-

د انساني فکري نظام بنسټ که څهٔ هم تر ډېره حده پر احساس او يادا ښت ولاړ دے خو دا د ذهن د پېچيده کارکړني يو عجوبه غوندي مظهر دے- دغه پېچيده نظام د دماغ د بې شمېره وړو وړو خليو په ذريعه په ټول بدن کي يو برقي جال جوړوي چي بېرته بيا د دماغ سره په همدغه شان نورو خليو تړلے دے[5]- دا راز ذهني برقي رو دماغ ته ځي او راځي- پخپله په دماغ کي هم هره حِصه له بلي سره په همدغه شان وړو وړو خليو تړاؤ لري او د دغو تر منځ هم همه وخت په تواتر سره برقي رو بهيږي- د دماغ جوړ ښت داسي دے چي دغه وړې وړې خليې يې د وخت سره سره د مشاهدو او تجربو په ترڅ کي بدليږي- ذهن د دماغ د دغه پېچيده نظام دکار کولو د مجموعي اثر نوم دے-هسي خو په انساني ژوند کي دبې شمېره غټو او وړو کارونو ټوله ذمه واري د ذهن پر وړو وي خو بيا هم څو داسي ستر ذهني صلاحيتونه شته چي وضاحت غواړي- ولي چي انسان له نورو مخلوقاتو څخه بېل او ممتاز په ښکاري- په دغو سترو ذهني صلاحيتونو کي ، احساس ، يادا ښت ، جبلت ، وجدان ، يقين ، عادت ، خواهش ، جذبه ، سماعت ، نظر ، او ژبه شامل دي- د فکر سره سره به پر دغو واړو سترو ذهني صلاحيّتونو څهٔ نهٔ څهٔ بحث کيږي ، کوم چي د موضوع په مناسبت ځاي ځای ضروري وي-

په عمومي توګه هر وخت ډېلا ډېل سوالونه تر بحث لاندي راځي ، لکه دا چي خلګ له تاريخه څنګه سبق اخلي ؟ له تېرو تجربو څخه څنګه ګټه ترلاسهٔ کېدای شي ؟ تېر ياداښتونه په ذهن کي څنګه محفوظه پاته کيږي ؟ د ياداښت په موجودګي کي هېره څله ممکنه ده ؟ خلګ سختي فېصلې په کوم قوت کولای شي ؟ په شعور او لاشعور کي څهٔ فرق دے ؟ لاشعور تر کومه حده دشعور مرسته کوي ؟ ژبه آيا د انسان پر فکر همدغومره اثر کوي لکه چي يې ليکوال ګڼي ؟ د دغه شان ډېرو نورو سوالونو ځوابونه چي د انساني نفسياتو په کومه څانګه کي ممکن ښکاري هغه د کوګنيټيو سائيکالوژي (cognitive psychology)[6] په نامهٔ مسوا ده- موږ چي د کوم بشپړ فکري نظام خبره کوو هماغه اوس په ساينسي اصطلا کوګنيشن بلل کيږي- دا د يوهٔ داسي بشپړ فکري عمل نوم دے چي تر ليدلو ، کتلو ، لوستلو او اورېدلو وروسته د انسان احساس ، توجه ، خيال ، پوهه ، ياداښت ، ګمان ، وسواس ، ژبه او قوّتِ فېصله ټول پکښې برخه اخلي- د آسانۍ د پاره په ځرګندون نمبر ۴ کي د دغه انساني فکري نظام يوه ساده غوندي خاکه ستاسو په وړاندي ږدم چي د موضوع وضاحت په وشي- دا نظام په اصل کي دکس پر ياداښت ولاړ دے او ياداښت يې درې ډېلا ډېلي برخي لري- لومړۍ برخه يې 'محسوساتي ياداښت' بلل کيږي چي تر ليدلو ، کتلو ، لوستلو او اورېدلو وروسته په انسان کښې يو داخلي احساس ، راپاځوي ، توجه يې را اړَوي او تر 'پلټونکي ياداښت' پوري يې رسوي-




خرګندون نمبر ۴ د انساني فکري عمل یوه ساده غوندي خا که

د یاداښت دغه دوهمه برخه یعني پلټونکے یاداښت ډېر مهم دے او د دربیمي برخي یعني 'پاخهٔ یاداښت' په مرسته محسوس کړي معلومات پلټي او په نتیجه یې رسوي چي فېصله وربا‌ندي وکړه شي- د دغو معلوماتو یوه مهمه حصه بیا تر پلټني وروسته 'کوډ' شي او پاخهٔ یاداښت ته منتقله شي چي د سبا دپاره د تجربي په حېث په کار راوسته کیږي- په اعلیٰ ذهني صلاحیتونو کي د معلوماتو د ترلاسهٔ کولو، پلټلو او بیا په نتیجه رسولو دغه بشپړ فکري نظام یعني

Information processing model of cognition ډېر مهم ګڼل کيږي- دا د کمپيوټر په شان په يوهٔ وخت ډېر نور بېلا بېل کارونه هم تر سره کوي لګيا وي- د يوهٔ خاص خيال تر څنګ د ډېرو نورو سوچونو يوه لويه ډله وي چي روانه وي- د کمپيوټر ايجاد هم په اصل کي د کوګنيشن تر دغه ساينسي پوهې وروسته ممکن شو او پر همدغه اصول يې د پراسېسر ، هارډ ډيسك او مېموري نظام کار کوي-

د انساني دماغ ، ذهن او فکر تر توپير وروسته د نفس په اړه هم څهٔ نهٔ څهٔ وضاحت لازمي ګڼم ولي چي نفسيات د ډېرو اړو مسئلو حل وړاندي کوي- نفسيات د بدلېدونکو ذهني کېفياتو د جاج اخستلو سره سره ، د روحانيت سره د ترڅلو ډېرو بېلا بېلو مسئلو ساينسي وضاحت هم کوي- کله کله خلګ سوال کوي چي عادت ، کردار او يقين څنګه بدلېداى شي ؟ د چا سره عقيدت يا نفرت څنګهٔ پېدا کيږي ؟ د نورو کسانو په حقله رايه څنګه جوړيږي ؟ د چا مدد کوَل څله پکارد ے ؟ يو کس هغه څوك څله بخښي چي ګرمه يې پرې کړې وي ؟ او هم دارنګه نور ډېر سوالونه دي چي خلګ يې هره روځ پوښتنه کوي- د دغو ټولو سوالونو ځوابونه هله ممکن دي چي موږ د هغو سترو ذهني صلاحيتونو مطالعه وکړو چي په انساني فکري نظام کي برخه لري- سماجي او معاشرتي نفسيات تر بحث لاندي راوړو- په ساينسي او تاريخي پسِ منظر کي د انساني ذهن د کار کولو بشپړه جايزه واخلو-

یوناني فِزیشن هیپوکریټس[7] ترعیسی علیه السلام تقریباً پنځهٔ سوه کاله مخکي د هغه وخت د ټولنیزو نفسیاتو جایزه اخستې وه او پر دې حقیقت یې ټینګارکړے ؤ چي بیمارئ د خدای له خوا د سزا په توګه نهٔ دي را لیږل شوي بلکي خپل خپل قدرتي وجوهات لري- دے د دنیا لومړے فزیشن ؤ چي د ذهني ناروغیو تفصیل یې وړاندي کړے ؤ او د هرمعالج دپاره یې اخلاقي ضابطه تجویز کړې وه- بیا سقراط ، افلاطون او ارسطو هم د یونان د خلګو پر سماجي نفسیاتو تر ډېره فلسفیانه بحثونو ته دوام ورکړے ؤ- د دوی په مُهمو موضوعاتو کي احساس ، غم ، ښادي ، خوند ، درد ، خواهش ، ښکلا ، علم ، اراده ، یادا‌ښت ، معقولیت او فطرت شامل ؤ- امام غزالي هم د خپل وخت پر سماجي نفسیاتو ډېر څهٔ لیکلي دي- په اولسمه عیسوي پېړۍ کي فرانسوي فلاسفر رېني ډسکارټس[1] دا وضاحت وکړ چي روح او بدن دوه بېل څیزونه دي او دا پر هره سطحه په آساني محسوسېدلای شي-

په عیسوي کال۱۸۹۷ کي دجرمني په ښار لیپزنګ کي[8]، یوفزیالوجیسټ ویلهلم مېکس ونډټ (Wilhelm Max Wundt) دذِهن د ساینسي مشاهدې یوه باقاعده لېبارټرۍ جوړه کړه او نفسیات یې په رسمي توګه په خلګو وپېژندل ځکه نو دے د ساینس د دغي څانګي پېل کوونکے منل کېږي- بیا په کال ۱۸۹۰ کي د امریکا د هاورډ پوهنتون پروفېسر ویلیم جېمز د نفسیاتو پر اصولونو یو زخیم کتاب تصنیف کړ او په امریکا کي یې هم د نفسیاتو علمي

حېثيت څرګند کړ- په نونسمه پېړۍ کي بيا د نفسياتو اهميت په علمي توګه نور هم ډېر زيات شو- د ويانا يوۀ نيورولوجيسټ سيګمنډ فرائيډ[9] د Psychoanalysis يعني نفسي تحليل نظريه وړاندي کړه او د شخصيت په پلټنه کي يې د شعور او لاشعور يومُهم تصور ورکړ- ددۀ زور پر اجتماعي لاشعور ؤ او د څيزونو سپيناوے به يې د جنس پر بنسټ کاؤ- دغه نظر وروسته د نفسياتو په دنيا کي انقلاب راووست- څوك يې په حمايت کي او څوك يې بيا په مخالفت کي را وَوتل- د سويزرلېنډ يو جرمن سايکياټريسټ ژانګ کارل ګسټاؤ[10](Jung, Carl Gustav ) د فرائيډ هغه فکر رد کړ چي د هر څۀ وضاحت به يې د جنس پر بنسټ کاؤ- دۀ د اجتماعي لاشعور نوے باب په نفسياتو کي شامل کړ چي تفصيل يې مخته په اووم څپروکي کښې وړاندي شوے دے-

د سوزرلېنډ د نفسياتو يو ماهر جين پياګټ به بيا د خپلو ماشومانو دعادتونو عميقه مشاهده کوله- دۀ به د نفسياتو پر بنسټ د دوی د عادتونو د بدلون ذکر د عمر په حساب کاؤ- خو ورو ورو د نړۍ ساينسي تحقيق دا ثابته کړه چي يوازي د نفسياتو په مطالعه او مشاهده د دغه شان پېچلوسوالونو بشپړځوابونه نۀ شي ورکړل کېدای- جين ورو ورو د کاګنيشن د نوي تصوّر سره مخ ته راغے او وضاحت يې وکړ چي انساني ذهن څنګه کار کوي- د دۀ په زړۀ پوري موضوع دا وه چي ذهن له ماحول څخه معلومات څۀ رنګه اخلي ، پلټنه يې څنګه کوي او بيا يې په درون کي ساتي څنګه ؟

امريکن ژبپوهـ نوم چومسکي په کال ۱۹۵۰ کي څرګنده کړه چي په انساني ذهن کي د ژبپوهني يو سترمرکز شته چي نهٔ يوازي د ګائېدو صلاحيت پکښې دے بلکي د ژبي د پلټني او بېرته د ځواب ورکولو پُوره پُوره صلاحيت هم لري- د ژبپوهني دغه اړخ د کوګنيشن د تصور سره ډېر سمون درلود ځکه يې ډېر اهميت پيدا کړ او د انساني دماغ په سترو ذهني صلاحيتونو کي د ژبي مقام په اوچت شو-

د انسان دذهن زياتره صلاحيتونه له ازله د دهٔ په خمير کي موجود دي خو يو شمېر داسي هم دي چي د انسان په خارجي ماحول پوري اړه لري- د بېلګې په توګه يوې خواته 'نفس' يو داخلي جبر دے چي د انسان په خمير کي شتون لري خو بلي خوا ته فطرت او تاريخ په خارجي ماحول پوري اړه لري- جبلت که څهٔ هم په قبايلي ټولنه کي زيات ليدل کيږي خو په حقيقت کي دا د هر کس د شخصيت يوه برخه ده- د انسانيت تر معراجه د رسېدو اولنۍ شرط دا دے چي له دغو جبلتونو څخه آزادي واخستله شي- د فکر، احساس او تجربې پر بنسټ د نظر زاويه سمه کړله شي- جبلت که څهٔ هم ځان لره يو حقيقت دے او انکار ترې کېداى نهٔ شي ، خو د معقوليت په خوا د سفر لاره د فکر او عقل په رڼا وړل کيږي- فکر او عقل دوه بېل څيزونه دي- فکر مثبت هم کېدلاى شي او منفي هم خو عقل د فکر د مثبت اړخ دوهم نوم دے- زموږ فلسفي شاعر غني خان وايي چي:

عقل مي ايرې شه ستا لپاره د فکرونو نه
سترګي مي قربان شه ستا لپاره د سوچونو نه
ځارشمه قربان شم ستا د خاورو د کورونو نه
ستا زړهٔ کي پرتې دي ټولي تللي افسانې زما
اې زما وطنه ! د لعلونو خزانې زما

دلته غني خان هم دا حقيقت څرګند کړے دے چي عقل او فکر دوه بېل څيزونه دي ، ځکه خو عقل د وطن تر بېلا بېلو فکرونو ځارَوي- يعني پښتني هوډ يې له عقله بغاوت کوي- دغه بغاوت يې ښايي چي د تخليقي تندي د تسکين موجب ګرځي-

پايله دا چي د انساني فکر بحث بېلا بېل اړخونه لري- نفسياتي استدلال يې تر ډېره حده د تخليقي تندي وضاحت کولاى شي او دا پر کوګنيشن يا ادراک مبني دے- فلسفيانه ، طبيعي او ټولنيز اړخونه يې خپل خپل تاريخي او علمي پسِ منظر لري- فکر په انساني ذهن کي د خيالونو د خاص ترتيب نوم دے- دا ترتيب چونکي په ټولو خلګو کي يو شانتي نهٔ وي ځکه يې نو د فکرونو هم بېلا بېلي سطحي دي- توپير يې په زدَکړه ، ياداښت ، پلټنه او قوتِ فېصله پوري اړه لري چي په سطحه کي يې زياتوکم ليدل کيږي- کوګنيشن يا ادراک د انساني فکري نظام يو نفسياتي ماډل دے چي دفکري استدلال ، تنقيدي عمل او تخليقي تندي وضاحت په کېداى

شي- د دغه فکري نظام مثبت اړخ عقل دے- که څۀ هم د ټولو انساني مسئلو حل يوازي په مثبت فکر يا عقل ممکن نۀ دے او دا د انساني عزم ، بقا او خدايي تصور په حقله سطحي غوندي شے ښکاري خو بيا هم د احساس او تجربې (ياداښت) په مرسته د نظر د زاويئې په تشکيل کي يو مهم رول لري- تخليقي تنده يو خاص **احساس** دے چي د فکر او يادانبتونو په مرسته تخليقي عمل تر سره رسوي- تخليقي عمل بيا په اصل کي يوه بېله رَويه (خوی ) ده چي تخليق کوونکے په تخليق بوخت کاندي-

## اخځليك


1- ګاکروګر ، ستيفن Descartes: An Intellectual Biography
يعني د ډسکارټس علمي سوانح ، آکسفورډ يونيورسټئ پرېس ، ۱۹۹

2- ډاکټر باقي دراني ، ’ دفکر ټال‘ صحا ف نشرياتي موسسه
کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۳

3- برټرېنډ روسل ، The Analysis of Mind ، يعني ’د ذهن تحليل
روټلېج (Routledge) لندن ، ۱۹۹۲'

4- لېنګر سوسنې ، احساس او سانچه ، (Feeling and Form) ، ۱۹۵۳

5- لېنګر سوسنې ، Mind:An Essay on Human Feeling
يعني ’ ذهن: پر انساني احساس يو مضمون‘ دوه ټوکې ، ۱۹۶ - ۱۹۲

6- اېنډرسن جان ، کاګنېټيو سايکالُوژي ، (Cognitive Psychology)
څلورم ايډيشن فري مېن ۱۹۹۵(Freeman, 1995).

7- ول ډيورانټ ، :The Story of philosophy

The lives and openions of the greater philosophers

اردو ترجمه سيد عابد علي عابد ، فکشن هاؤس مزنګ روډ لاهور ، ۲۰۱۰

8- ويلهلم مېکس ونډټ ، ’د فزيالوجيکل سايکالوژي اصولونهٔ ‘

(The Principles of Physiological Psychology) دوه ټوکه ۱۸۳ - ۱۸۴

انګرېزي ژباړه ۱۹۰۴

9- موکن هاپټ ، ’ سيګمنډ فرايډ: د لاشعور پلټونکے ‘

(Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious)

آکسفورډ يونيورسټی پرېس ۱۹۹۹

10 - ژانګ کارل ګستاؤ ، ’ Man and his Symbols

انسان او د دهٔ علامات‘ ، ډبل ډې ، ۱۹۶۹ ، دوهم ا شا عت

Laureleaf, 1997

* * *

# اِحساس

احساس د هغه داخلي ردِعمل نوم دے چي د يوې وقوعې تر ليدلو ، کتلو ، لوستلو يا اورېدلو وروسته د انسان په ذهن کي راپاڅيږي- په انساني احساساتو کښې له لويه سره څۀ فطري ترتيب نۀ وي بلکي د حواسو په ذريعه چي يو فرد کوم څۀ محسوسوي د هماغو په نتيجه کي په بېلا بېل انداز را اوچتيږي لګيا وي ، ځکه نو احساسات تر ډېره حده وجذباتو ته نزدې ښکاري- په انساني ذهن کي د فکر په مرسته د دغو احساساتو نوے ترتيب اصل څيز دے- انساني ذهن همه وخت د احساساتو په نتيجه کي راپاڅېدلو خواهشونو ، ګمانونو او خيالونو ته يو خاص نظم او ترتيب ورکوي-

دنظرزاويه د فکر او احساس ترمنځ يو معقول توازن دے- د فکر په حقله خو په تېر څپرکي کښې څۀ نۀ څۀ وضاحت وشو- اوس به د احساس په اړه څو غوټې خلاصي کړو- احساس په عمومي توګه يو داخلي څيز ګڼل کيږي چي تر ډېره حده صحي هم دے خو په فلسفيانه تناظر کي د خاريجي دنيا خبر ګيري هم حواس کوي- ځکه

نو د آسانتيا دپاره ټول حواس تر بحث لاندي راوړل ضروري ګڼم ولي چي په ادب کي د خيال د صحت اړه په حواسو پوري ده-

انسان د ژوندانهٔ په اوږدهٔ سفر کي له خپلو منفي جبلي قوتونو څخه په علم ، عقل او حواسو ځان را ايستلای شي- يوې خوا ته د نفس جبر ، د ماحول جبر ، د فطرت جبر او د تاريخ جبر خلګ په جهالت کي شکېل ساتي بلي خوا ته دوی په فکر ، احساس ، علم او عقيده د دغو واړو جبلي قوتونو مقاومت کوي- پيرمحمد کاکړ[1] وايي چي:

د دنيا اهل همه واړه نادان دي
نظر کله پر جيفه کړي دانا خلګ
توروسپين ونابيناوته يکسان وي
د ښو بدو تميز کاندي بينا خلګ

کهٔ څهٔ هم د ژوندانهٔ په فلسفه کي جبلت ځان لره يو ډېرمهم شے دے خو حقيقت د مربوط احساس نوم دے او حواس د خيال د صحت ضمانت ورکوي- دا هم صحي ده چي که عقل د خواهش د تسکين د پاره منطقي جواز پېش نهٔ کړي نو بيا خواهش ته هم له عقل څخه د بغاوت کولو حق شته[2]- په ادب کي د خيال هغومره اهميت دے لکه چي د ښکلا او ميني دے او خيال دلته دفکر د يوهٔ جُز په معنا اخستل کيږي- خيال په يوهٔ حِس نهٔ بلکي په همه واړو حواسو پوري اړه لري ، ولي چي يو حِس له هره اړخه خيال




څرګندون نمبر ۵ په انساني فکري عمل کي د احساس اجزا

هيڅکله هم نهٔ شي کتلای- د خيال د صحت بنسټ که څهٔ هم پر حواسو باندي دے خو د انسان داخلي احساس يې په تراشلو او سمولوکي ترهر څهٔ مهم رول لوبوي- لکه چي په څر ګندون نمبر۵ کي واضحه ده ، په انساني ذهن کي د نظر د زاويئې اړه په احساس ،

فکر او يادابښت پوري ده- احساس داخلي او خارجي دواړي برخي لري- خارجي حواس د راتلونکي وخت په حقله څۀ معلومات نۀ ښيندي بلکي د خوا وشا د ماحول د بېلا بېلو واقعاتو تفصيل راغونډوي او تر ذهن پوري يې رَسَوي- داخلي احساس بيا نوے ترتيب ورکوي او د نظر زاويه په سموي چي د مستقبل لاره په وليدله شي- د احساس مسئله داده چي د خوا وشا دماحول و بېلا بېلو واقعاتو ته هرکس پر خپل انداز ترتيب ورکوي او دا لازمي نۀ ده چي د يوۀ کس په ذهن کي د واقعاتو ترتيب هماغه شان وي لکه چي دبل کس دے- ځکه نو په ټولنه کي ځوك زيات حساس ښکاري او ځوك کم- يوازي داخلي احساس د انساني خوی يا روَيې په حقله حتمي خيزنۀ شي ګڼل کېدای ولي چي دا هم خپل يوحد لري-که ځوك پر يوه واقعه تر هغه وخته يقين ونۀ کړي تر څو چي يې پخپله ونۀ ويني نو بيا به د هغې تجربې څۀ احترام پاته شي کومه چي نورو بې شمېره کسانو په لېدلو او کتلو حاصله کړې ده ؟

د اجتماعي شعور څخه ځوك انکار کولای شي؟ د يوې سيمي د اوسېدونکو په ټولنيز فکري تشکيل کي بېلا بېلي کړني يا عوامل برخه لري او دغه عوامل د دغو خلګو ګډ ارزښتونه دي- کله چي معامله د ډېرو کسانو وي نو بيا حقيقت ومربوط ټولنيز احساس ته ويل کيږي- همدغه شان په ادب کي د خيال ښايست په ډېرو بېلا بېلو رنګونو پوري اړه لري او د خيال حقيقت مربوط ټولنيز احساس دے چي د اجتماعي لاشعور په بنسټ کي مُهمه برخه لري- خيال

كله كله د الهام په مثال وي خو كله بيا د ادراك په تالهٔ هم تلل كيږي- زما موخه و الهام ته پر ادراك فوقيت ورکول هيڅکله نه ده بلکي د احساس او فکر بېل بېل حېثيت تسليمَول دي-

په هر کس کي د انسانيت تر معنوي سطحي د رسېدو بې شمېره امکانات شته چي بُنياد يې پر ځان پېژندنه ، آزاده اراده ، غوره انتخاب او تخليقي قوت ولاړ دے[2]- تخليقي قوت د اجتماعي لاشعور سره تړلے دے چي په بنسټ کي يې مربوط ټولنيز احساس د نوو نوو خيالونو تشکيل کوي- د بېلګې په توګه په شاعري کي د ' آمد ' پر وخت چي د شاعر کوم کېفيت وي همدغه يې په اصل کي خپل بېل احساس دے چي شاته يې مراندي د لاشعور سره تړلي دي- انفرادي لاشعور يې بيا د ټولنيز لاشعور سره تړاو لري چي دهٔ ته د خپلي ټولني د درد محسوسَولو قوت وربخښي او په تخليق کولو يې خوښ او آماده کاندي-

هر کس د ټولني په جوړښت کي د يوې خښتي حېثيت لري خو فرق يې دادے چي خښته ژوند نهٔ لري او فرد يې لري- تخليق کوونکے د خپل نفس په جوړښت کي دننه د انفرادي شعور او لاشعور سره سره اجتماعي شعوري او لاشعوري توَمنهٔ هم لري ، ځکه نو د ټولني په تعمير کي مهم رول لوبولای شي- تخليق که څهٔ هم د تخليق کوونکي خپل انفرادي عمل ښکاري خو په اصل کي يې اثرات ټولنيز دي ولي چي دے د ټولني سره نفسياتي تړاؤ لري-

داسي برېښي چي نهٔ فکر او نهٔ يوازي احساس د سترو ذهني صلاحيتونو بشپړه اِحاطه کولای شي- فکر خو يوې خواته د فطرت د تسخير په سفر کي ګوَډ ښکاري او بلي خوا ته د خالق د وجود په حقله ړوند- هغه خو پرېږده ، زياتره خو د عزم په غلامي هم خوښ وي- ولي چي په دغو اړو د انسان عقلي استدلال بِلکل خام او سطحي غوندي ښکاري- که څهٔ هم عقليت يوه غوره فلسفه ده خو د حواسو ، عقيدې او علم ضروت هر وخت ورته وي - ځکه خو وېل ډيورانټ[3] وايي چي:

”Logic is a poor hors d'æuvre for the feast of philosophy”
يعني منطق د فلسفې په مېلمستيا کي يو معمولي سلاد دے-

فلسفه د انسان د کم عقلۍ او کم علمۍ لوی شمېر مثالونه وړاندي کوي- دا د منطق او علم سره سره د تاريخ ، سياست ، اخلاق ، عدل ، تصوُف ، بقا او فنا واړو احاطه کوي- ځکه نو وعقل ته هر کله د عقيدې او حواسو ضروت وي- دا ځکه چي د عقلي منطق بنسټ پر ازلي حقيقتونو ولاړ دے او له هره کبله ساکت ښکاري مګر ژوندون يو متحرك څيز دے چي د احساس په برکت د قانون څخه بغاوت هم کولای شي- فلسفه له ازله تر ابده د انسان او انسانيت پر بېلا بېلو اړخونو بحث کوي او د کائينات سره يې د تړاؤ پر نوعيت جُدا جُدا نظريئې وړاندي کوي- دا تر فطرت هم د بَره هستۍ په حقله

خاموشه نۀ ده بلکي په ژوندانۀ کي د نور خوند پېدا کوولو په تکل او د وېري د تېښتولو په موخه د مقصديت پر مرېنه هم بحث کوي- دا په ژوند کي د قوّت او عزم پر اهميت د بحث کوولو پوره پوره صلاحيت لري او د احساس په قوت د مادي ژوند په تنګه دايره کي د انسان او انسانيت د عظمت دپاره کار کوي-

خواهش د يقين غوندي يوه بېله رَويه ده- دا د يوۀ غېر حقيقي خيالي څيز په حقله يوه داسي روَيه ده چي په څۀ خاص موخه د هغه څيز ترلاسۀ کول ضروري په ګڼل کيږي- دغه خيالي څيز د خواهش اصل منزل دے او په هره توګه يې حاصلول بُنيادي مقصد ګڼل کيږي[4]- د بېلګې په توګه که څوك دا وايي چي "امن به راځي" نو دا خواهش هم کېداى شي او يقين هم- دلته خيال 'امن' دے ، که يې بنسټ پر تاريخي ، سياسي او مذهبي وقوعاتو ولاړ وي نو دغه خيال يقين ګڼل کيږي او که څۀ دا سي بنسټ ونۀ لري نو بيا خواهش دے- په خواهش کي د خيال اهميت تر هر څۀ مهم دے خو ورسره ورسره يې د تر لاسۀ کوولو احساس هم دے چي په هلو ځلو يې څوك خوښ کاندي- خيال ، يقين ، خواهش ، تصور ، توجه ، ګمان ، وسواس او جذبه واړه ذهني وقوعات هم کېدلاى شي- هره وقوعه په ذهن کي دننه د يوۀ بشپړ فکري عمل برخه ده چي په تواتر سره د نظر پر زاويه اثرات پرېږدي- په انساني ذهن کي د بېلا بېلو وقوعاتو لامتناهي سلسله او ورسره تړلي فکرونه او احساسات ، په ساينسي اِصطلاح درَويې څرخ(Behavioural Cycle) بلل کيږي او

دا په ټولو خلکو کي يو شانتي نهٔ وي بلکي په رفتار کښي يې تېر و پاته او په جوړښت کي يې څهٔ نهٔ څهٔ توپير په آساني سره ليدل کېداى شي- په څرګندون نمبر۶ کي د رويې څرخ ښوول شوے دے-




څرګندون نمبر ۶ په انساني ذهن کي د رويې څرخ

د رَويې د دغه څرخ پيل له تکليف ، درد ، جذبې ، خواهش او بې قرارۍ څخه کيږي او ختميږي پر ډاډ ، خوند ، يقين او تسل[5]- که د وقوعې بشپړتيا پر يقين او حقيقت باندي وي نو شعور بلل کيږي او

که داسي نهٔ وي نو بیا لاشعور دے- خواهشونهٔ زیاتره لاشعوري وي[6]- تخلیقي تنده یو احساس دے چي د یوې وقوعې تر اثر لاندي د فکر او تجربې په ګډون تخلیقي عمل ترسره کوي- دغه تخلیقي عمل بیا یوه رَویه ده چي په انساني ذهن کي د تېرو تجربو په موجودګي کي د فکري نظام یعني کاګنیشن یا ادراک په بڼہ کي پخیږي او اړه يې په شعور او لاشعور دواړو پوري ده-

آیا موږ یوازي پر حواسو بشپړ اعتماد کولای شو او که نهٔ ؟

ددې سوال ځواب دومره ساده نهٔ دے لکه چي ښکاري ولي چي زموږ د حواسو د کار کولو یو حد متعیَن دے او ترهغه په آخوا بیا وربانديي اعتماد نهٔ شي کېدلای- د بېلګې په توګه سپوږمی په انساني نظر له ځمکي څخه یو روڼ ګېند غوندي څیز ښکاري چي حقیقت نهٔ دے- ساینسي حقیقت دا دے چي دا له خاوري جوړه ده او خپله هیڅ ځاني رڼا نهٔ لري بلکي د لمر په رڼا روښانهٔ ښکاري- یا بیا د ستورو مثال وګورئ چي پر آسمان د رڼو غمیانو په شان ځلیږي خو په حقیقت کي يې لوی شمېر په جسامت تر ځمکي هم غټ دي- مطلب دا چي یوازي پر حواسو اعتماد کول هغومره لویه غلطي ده لکه چي یوازي د فکر په رڼا تګ دے- ولي چي حواس تر یوهٔ خاص حد په آخوا صحي کار نهٔ کوي- هلته نو بیا د فکر او **تجربې** په رڼا او د نظر په سمه زاویه د حق او ریشتیا لار لټول کیږي-

# اخځلیك


1- پیر محمد کاکړ ، ’ د پیر محمد کاکړ دیوان ‘
ترتیب او تصحي د عبدالرووف بېنوا ، خپروونکے صحا ف
نشریاتي موسسه کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۱

2- ډاکټر باقي درانی ، ’ دفکر تال ‘
صحا ف نشریاتي موسسه‌کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۳

3- ډیورانټ وِل ، The Pleasures of Philosophy
یعني ‘نشاطِ فلسفه‘ ژباړن محمد اجمل ، فیکشن هاؤس
مزنګ روډ ، لاهور ، ۲۰۱۰ —

4 - برټرېنډ روسل ، The Analysis of Mind) ،
روټلېج (Routledge) لندن ، ۱۹۹۲

5 - لېنګر سوسنې ، Mind:An Essay on Human Feeling
یعني ’ ذهن: پر انساني احساس یو مضمون ‘
دوه ټوکې ، ۱۹۶ — ۱۹۲

6 - لېنګر سوسنې ، Feeling and Form یعني
,احساس او سانچه ، ، ۱۹۵۳


* * *

# یاداښت، علم او تجربه

د فکر او احساس تر بحث وروسته چي د تخليقي عمل په اړه اوس د انساني ذهن کومه دریيمه فېکلټۍ تربحث لاندي ده هغه یاداښت دے- 'یاداښت ' د ټول عمر پر زدکړه ، علم او تجربه مشتمل دے- تخليقي تنده يو احساس دے او تخليقي عمل د تخليقي روَيې په نتيجه کي ترسره کېږي-تخليقي رَويه بيا د فکر اواحساس تر اثر لاندي په علم او تجربه پوري اړه لري- 'علم' هغه زدکړه ده چي انسان يې د فکر او احساس په موجودګۍ کي د خپلو حواسو په ذريعه د ماحول څخه کوي- دغه زدکړه چي په وارو وارو عَملي کړله شي او دانسان تر داخلي تنقيدي شعور هم تېره شي نو بيا ' تجربه' بلله کيږي- مطلب دا چي تجربه هغه څۀ ده چي يو کس يې لمخه علم لري او په وارو وارو ورسره مخامخ شوے وي- دا په تواتر سره دانسان په یاداښت کي جمع کيږي- د دۀ فکري نظام يعني ادراک او د نظر زاويه د همدغي تجربې پر بنسټ جوړيږي ولي چي دا د دۀ تر داخلي تنقيدي شعور تېره شوې وي او دے بشپړ يقين ورباندي لري- کوم څۀ چي د

انسان په تجربه کي راځي هماغه يې په یاداښت کي پراته وي چي ورو ورو د دهٔ د شعور برخه ګرځي- په یاداښت کي د دهٔ د فکرونو او احساساتو سره سره ، لوی شمېر تصورات او خيالات هم موجود وي- د ژوندانهٔ بېلا بېل ارمانونه ، خواهشونه ، وسوسې ، جذبې ، اميدونه ، غمونه ، خوشحالۍ او نور ډېر څهٔ ورو ورو د دهٔ په یاداښت کي خوندي کيږي او پر دغه بنسټ يې د شعور او لاشعور دواړو تشکيل کيږي - تر عيسیٰ عليه السلام تقريباً پنځمه سوه کاله مخکي ، يعني د سقراط تر دور هم لمخه اېمپيډوکلس[1] Empedocles دا ويلي ؤ چي :

"Each man believes only his experience"

مطلب دا چي هر سړے یوازي پر خپله تجربه يقين کوي- اوسنے دور په اصل کي د تعليم ، تجربې او ټېکنالوژۍ پر تمبو ولاړ دے- تعليم پخپله يو داسي عمل دے چي د علم سره سره تجربه هم پکښې حاصليږي- د هري نظريئې درې بېخکي اجزا يقين ، طاقت او علم وي- چونکي تجربه د علم او زدکړي عملي شکل دے او په وارو وارو د فرد تر داخلي تنقيدي شعور هم تېريږي ځکه نو واقعي هم يقين ورباندي کېدلای شي- په اوسني دور کي د علم او تجربې ضرورت په ډېر شِدت سره محسوسېږي ولي چي همدغه د فرد اصل طاقت دے- د قامونو د ترقۍ زينه اوس د هغوی علمي ساينسي او تخليقي قوت ګڼل کيږي- اقتصادي ګټي يې هم نن سبا ټولي پر علمي بُنيادونو کيږي- د علم سره سره د انفرادي او اجتماعي ګټو اړه په

حکمت پوري هم وي او د حکمت تړاو د تجربې پر بنسټ د انساني فکر سره دے چي تخليق کوونکے يې په تخليقي عمل کي په کار راوړي -

علم که څۀ هم په ظاهره يو ساده او صفا لار ښکاري خو په حقيقت کي بې شمېره لوړي او ژوري لري- د علم دنيا دومره پراخه ده چي اِحاطه يې نۀ شي کېدلای- د ساينسدان علمي مېدان د ديني عالم څخه ډېر بېل دے او د فلاسفر بيا د علم خپله بېله دنيا ده- د هر يوۀ خپل بېل مېدان دے او دوی په ټولنه کي د بدلون په اړه په خپل خپل انداز عِلمي او عَملي اړخونه تر بحث لاندي راوړي- د علم په حقله بېلا بېلي فکري ډلي د معاشرې د نوي تشکيل په لار کي په هيڅ توګه هم خنډ نۀ وي بلکي په ټولنه کي اجتماعي شعور وده په کوي- د علم د وسعت سره دغه درې واړي ډلي يو بل ته نژدې کيږي او د يوۀ ' کُل' په توګه[2] د ټولني د ښېګړي په هلو ځلو کي برخه اخلي ، مګر معقوليت او اعتدال يې مهم شرطونه دي- ولي چي معقوليت د فطرت اصل جوهر دے او انسانيت په فطرتي توګه د فرد ومعقوليت ته وَيَل کيږي- لکه چي تخليقي عمل په احساس ، فکر ، علم او تجربه پوري اړه لري همدغه شان د نظريې تړاو په يقين ، علم او طاقت پوري دے[3]- د انسان يقين د دۀ د نظريې مزے عنصر دے چي نۀ يې علم او نۀ طاقت مقابله کولای شي- دا د انسان له ذهن څخه هره وېره تښتوي ، داخلي عزم يې ځوانوي او په رګونو کي يې بهېدونکې وينه ته جوش ورکوي- په قام کي يوه عجيبه

غوندي مينه راخوځوي چي د وطن د بقا بشپړ ضمانت ورکولای شي او هغي قربانۍ ته يې تيار کاندي چي هيڅ يو قوت يې هم مخه نۀ شي نيولای- طاقت د نظريې په جوړښت کي دوهم مزے عنصر دے خو د زمه وارۍ د ژوراحساس سره- ولي چي د طاقت استعمال که په زمه واري سره نۀ وي نو بيا بربادۍ راوړي-

لکه چي فکر او احساس د انسان په داخل کي وده کوي او د نظر زاويه په جوړېږي ، همدغه راز علم د کس د خارجي دنيا په حقله بې شمېره معلومات ښندي- د عِلم په څراغ د خارجي دنيا د تور او سپين توپير ممکن دے ځکه خو د احمد شاه بابا دعا ده چي:

د احمد سترګي بينا کړه
ته د سترګو رهنما يې

د علم پر بنسټ عَملي تجربه د قام د تربيت يافته افرادي قوت په جوړښت کي مدد کوي- دغه غوره افرادي قوت په اقتصادي ، عسکري ، ټېکنيکي ، ساينسي ، معاشي او معاشرتي توګه قام مخ په وړاندي بيايي- لکه چي يوې خوا ته علم خلګو لره د خارجي دنيا څخه معلومات راجمع کوي ، همدغه شان بلي خوا ته د تجربې پر بنسټ ولاړ يقين هغه داخلي کيفيت دے چي د فرد وفکر او نظر ته يو بېل غيبي اعتماد او قوت وربخښي- افراد د قام د جوړښت خښتي دي او د قام اصل طاقت په آزاد وطن ، ژبه ، نسل ، کلتور او معاش

پوري اړه لري- دغه طاقت که په معقوليت استعمال نۀ شي نو جنگ او ورانۍ راوړي ، او که د امن دپاره پکار راووست شي نو ټولنه په جوړيږي- نتيجه دا چي په تخليقي عمل کي د نظريې د عملي کولو دپاره استدلال ، اعتدال او معقوليت بهترين اوزار دي-

کوم څۀ صحي دي او کوم غلط ؟ د دغه سوال ځواب د تجربې پر بنسټ ممکن دے ولي چي تجربه د ادراك په ترکيب کي مهم رول لري- لکه چي يې په څرګندون نمبر۷ کي وضاحت شوے




څرګندون نمبر ۷ د غلط او صحي توپير

دے ، انسان لره هر هغه څۀ صحي دي له کوم سره چي دے مُتفق وي او بشپړ ادراك يې لرې- او هر هغه څۀ ورلره غلط وي د کوم چي ادراك نۀ لرې او ورسره متفق نۀ وي- ځکه نو تجربه د صحي او غلط

د ادراك يوه پېمانه ده- كه څۀ هم نيّت يا آزاده اراده هغه قوت دے چي انسان هر هغه څۀ په كولاى شي كوم چي يې زړۀ و غواړي او د غوره انتخاب كولو اختيار يې هم لري ، خو دا هم ترڅان پېژندنه وروسته امكان لرلاي شي- دغه ځان پېژندنه د پوهي او تجربې تر مرحلو وروسته ممكنه ده- نامتو انګرېز فلاسفر ډاكټر جان لاك[4] ، چي د انګرېز باچا چارلس دوهم معالج يا فزيشن هم ؤ ، په اولسمه پېړۍ كي د انګرېزانو دخپل منځي جګړې په دور كي دا ويَل چي:

No man's knoledge here can go beyond his experience

يعني د انسان علم د دۀ تر تجربې په آخوا نۀ شي تلاى-

موږ په تواتر سره له خپل ماحول څخه د خپلو حواسو په ذريعه خام معلومات اخلو- په كچنيوالي خو دا هم نۀ يې راته پته چي د خواؤشا د څيزونو نومونه څۀ دي؟ مګر ورو ورو د تور او سپين ، خوږ او تريخ ، شين او سُور ، يخ او ګرم ، سخت او نرم ، ښوي او ګرګن تر منځ د توپير تجربه راته كيږي- دعمر دغه تجربه په ' يادابښت' كي ساتو او په راتلونكي وخت كي د نوو نوو څيزونو پر همدغه بنسټ د پېژندني هلي ځلي كوو- دا عمل ټول عمر جاري وي ، د زدَكړي پر دغه بنسټ فكر كوو ، نتيجې ترې راباسو او فېصلې ورباندي كوو- د علم او تجربې د زياتېدو سره سره د محسوسولو او فكر كوولو صلاحيت هم زياتيږي تر څو چي د پوهي سطحه د دانشورۍ تر حده ورسيږي- تجربه انسان ته د قنديل په شان د ژوندانۀ د لوړو او ژورو درك وركوي- علم هيڅكله هم د تجربې بغير نۀ شي عَملي كېدلاى- په خپل داخل كي د

ځان پېژندني سفر هله امکان لري چي د تجربې قنديل بل وساتل شي- لکه مخکي چي يې ذکر وشو، تجربه له فطرت څخه اخسته کيږي او د فظرت جوهر معقوليت دے- ډاکټر جان لاك[4] دا هم وايي چي :

" Nature never makes things for mean or no use"

مطلب دا چي فطرت بې مقصده او بې کاره څيزونه نۀ جوړوي-

په فطرتي څيزونو کي هر کله معقوليت ښکاري او په مصنوعي څيزونو کي پر ډېرو ځايونو تضاد ليدل کيږي- په طريقت کې يوازي پر عقل اعتماد نۀ شي کېدلای او په شريعت کي د احساس پر صحت شك کيږي- په شعوري سترګه شاعري ټوله مبالغه ده مګر په تخليقي دنيا کي يې د معيارخپله بېله لاشعوري ګڅه ده- د ښۀ او بد، نېکۍ او بدۍ اصل توپير په رَويه کي ليدل کيږي- عمل په رَويه پوري اړه لري او دا په ياداښت کي د تېري تجربې پر بنسټ سموالے مومي- ښايست د نظر په زاويه پوري اړه لري او دغه زاويه د فکر او احساس سره سره د تجربې په تالۀ تلل کيږي- ښکلا، خوند، درد، آواز او مينه په بېلا بېلو څيزونو کي نۀ وي بلکي د علم او تجربې پر بنسټ په هر هغه کس کي دننه موجود وي کوم چي يې محسوسوي- د نامتو فلاسفر اومورخ ډېويډ هم[5] په قول:

"Beuty in things exists in mind which contemplates them"

يعني دڅيزونوښکلاپه هغه ذهن کي وي کوم چي ورباندي غور کړي-

که سترګي نۀ وي نو ښکلا به چرته وي- که ژبه نۀ وي نو به د خوراك او څښاک خوند څنګه وي- که غوږونه نۀ وي نو آواز څۀ معنا لرلای شي- که ' حساس جسم' نۀ وي نو بيا دګرمۍ او يخ احساس څه رنګه کېدای شي- د دغه شان ټولو سوالونو ځوابونه په انساني ياداشت کي د موجودي تجربې پر بنسټ امکان لري-

په انساني ذهن کي د زياترو ځيزونو علم بشپړنۀ وي ځکه نو هيڅ هم حتمي نۀ شي ګڼل کېدلای- ځيني ځيزونه په فطري توګه په يوۀ نوع کي زيات او په بل کي کم وي ، لکه د بوی احساس چي په سپي او لېوۀ کي تر انسان ډېر زيات دے- ډېر ځناوران د رنګ احساس نۀ لري ، ځيزونه واړه ورته تور او سپين ښکاري- ځکه د دغو ځناورانو تجربه د بوی او رنګ په اړه له انسان څخه بېله ده- تر ډېره حده د يوۀ انسان د خوند معيار له بله بېل وي ځکه خو يې خوښ او نا خوښه هم يو شانتي نۀ ښکاري- لکه چي په ځرګندون نمبر ۸ کي ټينګار وربانديي شوے دے ، هيڅ يو ځيز هم حتمي نۀ دے- يوه پېغله ځکه ښايسته بلله کيږي چي دا تر هغو ټولو نورو پېغلو په رنګ اوکړۀ وړۀ بېله وي دکومو په منځ کي چي دا مېشته وي- که همدغه پېغله د نورو پېغلو په داسي ډله کي ناسته وي کومي چي تر دې په کړۀ وړۀ غوره وي نو بيا به دا تر ټولو شانه پاته وي- همدغه شان په توره شپه کي د ځلاندو ستورو ترمنځ د رڼا تر ټولو ښکلې ذريعه سپوږمۍ ښکاري خو په سپينه ورځ يې د لمر په مقابل کي وجود هم د سترګو نه هوډر وي- ځکه نو دا واضحه شوه چي کوم څۀ




ځرګندون نمبر ۸ حتمي څۀ دي؟

موږ احساسوو هغۀ حتمي نۀ دي- په علمي توګه يې پلټنه لازمي ده ځکه نو حتمي خبره داده چي يوه خبره هم حتمي نۀ ده- معروضي حقيقت نۀ خو ښايسته دے نۀ بد رنګه ، نۀ تور دے نه سپين ، نۀ روڼ دے نۀ تاريك ، نۀ يخ دے او نۀ ګرم- په اصل کي دا ټول خارجي څيزونۀ هم زموږ داخلي احساسات دي- دغه بېلا بېل احساسات موږ ته د حقيقت پته نۀ راکوي بلکي د نوو نوو خيالونو په تخليق کي راسره مرسته کوي- موږ يوازي هغه خيالونه پېژنو کوم چي زموږ داخلي احساس د حواسو په مرسته پخپله تخليق کړي دي- دا د خوند خوند خوراکونه ، دا خوشبو ، دا ښکلي منظرونه ، دا رڼا ، دا

خوږې خوږې سندرې ، دا لمس او ملګرتيا ټول د ذهن داخلي تخليقات دي- په خارجي دنيا کې چې هر څۀ دي او چې موږ يې زياتره دخپلو اوږدو خيالونو د پېل ذريعه او د تخليق د صحت ضامن ګڼو ، په اصل کې پخپله د ذهن تخليقونه دي- موږ هر وخت د پرکېدلو احساساتو په انتشار کې د نوو نوو فکرونو او خيالونو په تشکيل کې لګيا اوسو ، ربط پکښې پېدا کوو او په خپل داخلي ماحول کې نوي نوي تخليقونه ترې کوو-

اديبان وايي چې مينه په دليل شکېل نۀ ده ، ولې چې دا يو داسې احساس دے چې د خلکو د خارجي دنيا په عېني ترديد يې هيڅ تسل نۀ شي کېدلای- دا د تېرو وختونو د اجتماعي لاشعور يو داسې مظهر دے چې د انساني نفس په ساخت کې يو مستقل ځای لري او په مادي منطقي استدلال يې هيڅ اړه هم نشته- خو که په ديانتداري سره يې جاج واخستل شي نو دا حقيقت هم يو ښکلے خيال ښکاري ولې چې مينه د وخت په تېرېدو ، د تجربې په زياتېدو او د علم تر اثر لاندې ورو ورو بدلېږي- خلک دا هم وايي چې د شوق هيڅ قيمت نشته خو په حقيقت کې دا خبره هم حتمي نۀ ده- هر شوق د قيمت يوه بَره سطحه ضرور لري او دغه سطحه يې د مينې په شان د وخت په تېرېدو ، د علم په زياتېدو او د تجربې په رڼا کې ورو ورو بدلېږي-

يوازې تجربه هم حتمي څيز نۀ دۀ ولې چې د تجربې همېشه يو ماخذ وي- که ماده د تجربې اصل ماخذ دے لکه چې د

ډېرو پوهانو ورباندي اتفاق دے ، نو بيا دمادي بشپړ علم پکار دے- يو ګرام سرۀ زر په تالۀ يو ګرام مادي څيز دے او لس ګرامه مِس په تالۀ ترې ډېر درانۀ دي خو د انساني تجربې پر بنسټ د دغه يوۀ ګرام ارزښت تر هغو لسو ګرامونو ډېر زيات دے- ځکه نو د مادې ارزښت په ګرام نۀ دے بلکي اصل پېمانۀ يې د انسان خپله تجربه ده- همدغه شان لمر دے چي په انساني حواسو کوم څۀ ښکاري له هغه څخه په وزن ، جسامت او جوړښت ډېر بېل دے- له ځمکي يې فاصله چي په حواسو څومره محسوسيږي په اصل کي تر هغه بېخي ډېره اوږده ده- ځکه نو د انسان تجربه هم حتمي نۀ شي ګڼله کېدلای ، علمي پلټني ته بيا هم اړتيا لري- که د معروضي دُنيا نۀ هغه ټول ارزښتونه لري کړو کوم چي موږ يې د خپلي تجربې او مشاهدې په توګه پېژنو نو بيا بۀ څۀ پکښې پاته نۀ شي- داسي برېښي چي ماده پخپله هم د انساني احساساتو يو تصوير دے چي په ذهن کي وجود لري- که د تجربې پر بنسټ څوك دا ګوري چي ملګرے يې تر دۀ مخکي دے او يا شاته ، نو دا د دۀ تر مشاهدې پورته نور هيڅ هم نه دي- کۀ غر لوړ دے او درياب کښته نو دا د انسان مشاهده ده چي د دۀ د رَويې په تشکيل کي يې لاس دے کنې لوړ او ځوړ خو ځان لره څۀ خاص مطلب نۀ شي لرلای-

فلسفيان[7,6] او صوفيان چي د کوم زمان و مکان خبره کوي که غور ورباندي وشي نو دا هم څۀ خارجي څيز نۀ ښکاري بلکي د مشاهدې يو بېل طرز دے- د طب په دنيا کي خو دا معمول دے

چي که څوك پُوره په هوش کي نهٔ وي نو لومړۍ پښتني دا ترې کيږي چي اوس څهٔ وخت دے؟ تهٔ دا وخت چيري يې؟ دا کوم ځای دے؟ کور دي چيري دے؟ عمر دي څو دے؟ او همدغه شان نور ډېر سوالونه- د دغو سوالونو ځوابونه دا پته ورکوي چي دغه مريض د وخت او ځای په حقله صحي معلومات ورکولای شي او که نهٔ-

'زمان'د رَوان وخت دوهم نوم دے او د حرکت سره يې ټينګ تړاؤ دے - کهٔ حرکت نهٔ وي نو بيا په جهان کي د څهٔ بدلون تصور نهٔ شي کېدلای- او که بدلون نهٔ وي نو وخت څهٔ رنګه باقي باته کېدای شي- ځکه نو وخت د يوهٔ بهاؤ احساس دے او حېثيت يې بلکل ' اضافي' ښکاري چي انساني ذهن يې و جهان ته ورکوي- د زمان حقيقت د 'بېګا' او 'سبا' تر احساس پورته نور څهٔ نهٔ ښکاري ، ولي چي په ذهني بيماري کي او يا د انساني ذهن په عدم موجودګي کي د 'بېګا' او 'سبا' احساس نه شي پاته کېدلای- د زړهٔ مريض ته تر روغ سړي زيات د وخت احساس وي ولي چي دے وخت کم ګڼي او په خپل ذهن کي يې د ابدي سفر کوولو خيال ساتلے وي- د وخت احساس په عامو خلګو کي هم يو رنګه نهٔ وي- دا په بېلا بېلو خلګو کي مختلف وي- د ماشوم ، لوی ، ځوان او زاړهٔ د وخت احساس بېل بېل وي- بدي داره سړي ته ښايي چي د وخت احساس تر عام فرد زيات وي ، ولي چي د دهٔ په خيال کي وخت ورسره ښېخي کم وي- بلي خوا ته د روژې مياشت تر نورو مياشتو ډېره اوږده محسوسيږي حالانکي روځي پکښې هغومره وي لکه چي په

نورو مياشتو كښې- د غم شپه تر نورو شپو ډېره وږده وي ولي چي ګلَول يې مشكل وي او دا د وخت احساس هم وربدل كړي- دا دليل هم پر خپل ځای صحي ښكاري چي د وخت حېثيت معروضي دے ولي چي بدلون او بهاؤ خو د انسان د موجودګۍ بغېر هم باقي پاته كېدلای شي خو هلته به يې د مشاهده كوولو والا څوك نۀ وي- د مارغانو الوتني بۀ وي، خزندګان بۀ ګرځي راګرځي، سيندونه به بهيږي، واښۀ به را شنۀ كيږي، درختي به مېوې كوي او سمندر به ځپې هم وهي خو د ليدلو كتلو د پاره به يې انسان موجود نۀ وي- ځكه خو موږ دا يقين لرو چي په جهان كي هر څۀ چي دي انسان لره پېدا كړل شوي دي- د جهان هرڅيز د انساني ذهن تخليق نۀ دے، لكه چي د عېنيت په جرمن فلسفه كي ټينګار وربانديي كيږي-

موږ د 'زمان' (Time) تقسيم پر بېلا بېل انداز كوو- دا يوې خواته پر ګړي، دقيقه او ساعت مشتمل ګڼو- بلي خواته يې پر شپه او روځ ځله وېشو- روځ بيا پر سهار، غرمه، ماښام وېشلې راته ښكاري- همدغه راز يې يو طرف ته پر مياشت، كال، پېړۍ او پېر تقسيمَوو او بل طرف ته يې پرتېر (ماضي) اوس (حال) او راتلونكي (مستقبل) مشتمل بولُو- د زمانې په اړه انسان د وخت د څۀ نۀ څۀ آګاهۍ دعوه كوي- د مكان (Space) په حقله هم انسان اوس په ډېر څۀ خبر دے- د كائنات په ډېرو رازونو يې اوس سر خلاص دے-

'مكان' د واټن د ګڃي په توګه اخست كيږي- دا كله كله زمان هم بدل كړي لكه چي د شپې په سفر كي او يا بيا د سفر په پای

کې په بل ښار کي زياتره دا پته نۀ لګيږي چي وخت څۀ دے او قبله په کومه خوا ده- نتيجه دا چي د زمان او مکان سلسله د 'واټن' او 'مقام' پېچَلے بحث دے- دا هم څۀ خارجي څيز نۀ ښکاري بلکي د تجربې اومشاهدې يو بېل طرز دے- دمکان حېثيت د واټن د ګچي په توګه تر ډېره حده اضافي دے او د زمان تړاؤ که څۀ هم د انسان سره اضافي غوندي ښکاري خو د معروضي حېثيت څخه يې هم انکار نۀ شي کېدلای- مکان چونکي د حرکت د واړو خواوو پته ورکوي ځکه نو د انسان له ذات څخه بې نيازه دے- انسان چي کله د ساکت پسِ منظر خلاف د روان څيز مشاهده کوي نو دے په اصل کي د زمان و مکان مشاهده کوي- که پخپله انسان نۀ وي نو به هم حرکت او رواني وي خو مشاهده بۀ يې نۀ شي کېدلای- داسي برېښي چي د زمان ومکان دا جهان د انساني فهم او فراست اصل مرکز دے او انساني ذهن ترې بې شمېره اثرات اخلي- دا جهان د انسان د وجود سره مشروط دے او د هر څۀ سر چينه ده- انساني ذهن وجهان ته معنا ورکوي کنې د دې دنيا د بېلا بېلو څيزونو به هيڅ يو مطلب هم نۀ وای[8]- انساني ذهن د هر څۀ خالق نۀ دے بلکي د خالق وبېلا بېلو څيزونو ته مفهوم ورکوي او په دا کار کي لا دے تراوسه په زرګونو پيړۍ شاته دے- دا خالق په اصل کي د 'لامکان' تصوّر دے- چونکي فلسفه د کُل په رڼا کي د جُز دمشاهدې او مطالعې نوم دے ځکه نو زما موخۀ همدغه ده- خو د لامکان په اړه لا تر اوسه انسان ړوند ښکاري- د زمان ، مکان او لامکان بحث مولانا رومي[9] په وارو

وارو په خپل متصوّفانه انداز هم څېړلے دے او د لامکان تصوّر يې په دې انداز بيان کړے دے:

لامکان که اندران نورِ خداست

ماضي ومستقبل و حال کجاست

د عېنيت د فلسفې منونکي که څۀ هم انساني ذهن د هرڅۀ دخالق په توګه وړاندي کوي خو د زياترو مطلب ښايي دا وي چي دوی پرَته له انسانه نوره ټوله خارجي دنيا حقيقي نۀ ګڼي- که داسي نۀ وي او واقعي دوی انساني ذهن د هرڅۀ خالق ګڼي نو بيا هم په انساني ذهن کي خو د نامعقوله نظرياتو ګنجايش هر کله وي- حقيقت دا دے چي دوی په علم کي د مشاهدې اهميت ډېر زيات کړ- پَرته له دې چي د نظر زاويه مي په دې اړه بېخي بېله ده ، زۀ دا اعتراف لازمي ګڼم چي دعېنيت د فلسفې منونکو د مشاهدې ارزښت دومره زيات کړ چي د ډېرو ساينسي ايجادونو پېل په وشو او دا د علم لوی خدمت دے-

د علم په باب د پوهانو د نظر زاويئې يو رنګه نۀ وي- علم د ساينسدان په نظر مشاهده او تجربه ده ، د دين د يوۀ عالم په نېز د خدای او رسول د اِرشاداتو په رڼا کي د شرعي قوانينو مطالعه ده او د فلسفي په نظر د 'کُل' په رڼا کي د 'جُز' علمي ، فکري او عقلي جاج دے- که يوازي په انساني فکر د سمي لاري تعيُن نۀ شي کېدای او انساني حواس تر يوۀ حد په آ خوا کار نۀ کوي نو بيا يوه خبره هم حتمي نۀ شي ګڼل کېدای- ځکه نو دا ويَل غېر معقول نۀ ښکاري چي

په فلسفه کي حتمي خبره داده چي يوه خبره هم حتمي نهٔ ده- د نظر د زاويئې د سموالي اړه د فکر او احساس سره سره په علم، مشاهده او تجربه پوري هم ده- کله فکر (خيال) تر مشاهده لوی حقيقت منل کيږي ولي چي خيال د مشاهدې څخه پر اخذ شوو معلوماتو محيط وي او کله بيا مشاهده د مدّلل حقيقت پته هم ورکوي-

تجربه چونکي پر هغه څهٔ مبني وي د کوم چي يو کس لمخه علم او مشاهده لري او په وارو وارو ورسره مخامخ شوے وي، ځکه نو دے يقين ورباندي کولای شي او تر يوهٔ حده يې حتمي هم ګڼي- لکه چي مخکي يې ذکر وشو، د ژوندانهٔ دغه تجربه د مطالعې او مشاهدې په شکل مسلسل د انسان په ياداښت کي سره راټوليږي[10]- د همدغي تجربې پر بنسټ د دهٔ د نظر زاويه جوړيږي او د عمر په تېرېدو سره دغه زاويه ورو ورو سميږي هم- د ژوندانهٔ د تجربې پر بنسټ ولاړ دغه عقل د بلوري عقل په نامه ياديږي چي وروسته به يې په پنځم څپرکي کښې وضاحت وشي- تجربه چونکي د انسان تر داخلي تنقيدي شعور تېره شوې وي ځکه نو د دهٔ بشپړ يقين ورباندي وي- کوم څهٔ چي د وخت او عمر په تېرېدو د انسان په تجربه کي راځي، هماغه يې په ياداښت کي سره يو ځای کيږي او د شعور په يوه ځنډه کي تر ډېره پراتهٔ وي- په ياداښت کي د انسان د مشاهدو او تجربو سره سره افکار، احساسات، تصوّرات او خيالات هم موجود وي- خواهشونه، ارمانونه، امېدونه، وسوسې، جذبې، غمونه او ښادۍ ټول د انسان په ياداښت کي خوندي کيږي او پر همدغه

بنسټ يې د شعور او لاشعور تشکيل کيږي- احساس ، فکر او تجربه هله د نظر زاويه سموي کله چي انسان دغه داخلي او خارجي عوامل واړه په نظر کي وساتي-

پايله دا چي تخليقي تنده يو احساس دے چي د فکر او ادراک يا کوګنيشن تر نظام لاندي تخليقي رَويه وده په کوي- او د ادراک بنسټ پر يادابنت ولاړ دے چي د تجربې په شکل کي په انساني ذهن کي سره يوځای کېږي- د يادابنت بيا درې بېلا بېلي برخي دي- لکه 'محسوساتي يادابنت' چي د خارجي ماحول څخه معلومات راټولوي او تر 'پلټونکي يادابنت'پوري يې رسوي-هلته تر پَلټني او 'کوډ' کېدلو وروسته بيا دغه معلومات د زدکړي او تجربې په شکل په درېيمه برخه يعني 'پاخهٔ يادابنت' کي سره جمع کيږي- او د ضرورت په وخت په فېصله کولو کي مدد تري اخست کيږي- که فېصله د تخليق کولو وي نو بيا له دغو معلوماتو څخه يوه حصه تر پلټني وروسته 'ډي کوډ'شي او له پاخهٔ يادابنت څخه بېرته و پلټونکي يادابنت ته رامنتقله شي او په تخليقي عمل کي په کار راوسته کيږي- ځکه نو يادابنت يواعلیٰ ذهني صلاحيت دے چي د فکري نظام ديوهٔ غړي په توګه د احساس او فکر په ګډون په تخليقي عمل کي مهم رول لوبوي-

## اخځليك


1- براين مېګي ، (The Story of philosophy)
'د فلسفې نکل' ډارلينګ کينډرسلې(ډي کې) کتابونه ، ۲۰۰۱

2- کارلس لېمنټ ، (The philosophy of Humanism) يعني

د انسان دوستۍ فلسفه اردو ترجمه امجد علي بهټي ،
فکشن ، مزنګ روډ لاهور ، ۲۰۰ ،

3- ډاکټر باقي دراني ، ' دفکر ټال '
صحا ف نشرياتي موسسه کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۳

4- جان لاك ، An Essay Concerning Human Understanding
يعني ' د انسان پر دانش يو ه مقاله ' ،
آکسفورډ يونيورسټي پريس ، لندن -

5 - ډېويډهم ، A Treatise of Human Nature
آکسفورډ يونيورسټي پرېس ، (پېپر بېك ) د ليکني کال ۱۷۴۰

6 - ډيورانټ وِل ، The Pleasures of Philosophy
يعني ' نشاطِ فلسفه ژباړن محمد اجمل ، فيکشن هاؤس
مزنګ روډ ، لاهور ، ۲۰۱۰ -

7- ډاکټرعلي شريعتي ، ' افکارِ شريعتي ' ترتيب شيما مجيد ،
اداره منهاج الصالحين‌جناح ټاؤن ټهوکر نياز بېګ ،
لاهور ، ۲۰۰۱

8- اېنډرسن جان آر ، کوګنيتيو سايکالوّجي Cognitive Psychology
څلورم اېډيشن ۱۹۹۵

9- محمد عبدالسلام خان ، ' مولانا جلال الدين رومي '
حيات و افکار ، سيټي بك پوائنټ اردو بازار کراچي ، د اشاعت کال ۲۰۱۲

10 - 'Learning and Cognition يعني زدکړه او ادراک .
Comprehensive coverageing 5th ed. Pearson, 2000.

***

# دعقل شپول

کوم وخت چي زۀ د ښونځي يو طالبعلم وم په هغه دور کي  به مي هم کله کله چي له اديبانو او پوهانو څخه د دانشور لفظ واورېد نو به ورته په فکر شوم چي دا بيا وَځۀ ته ويَل کيږي ؟ دومره به مي سر پرې خلاص شو چي دا خلک ځانونه له عامو خلګو نه بېل ښئي- دکالج او يونيورستۍ په دور کي بيا د دانشورۍ او اِنټلېکچووليزم شخول ډېر زيات ۇ- سوچ به مي کاۇ چي د دغو خلګو سرونه خو  تر عامو خلګو غټ نۀ دي او دماغونه به يې هم په تالۀ تر نورو خلګو درانۀ ښايي چي نۀ وي ، بيا نو څنګه دوی دانشوران ، اِنټلېکچوولز يا ذهين ګڼل کېدای شي ؟   دغه سوال تر ډېرو کلونو راسره مل ۇ خو ځواب بۀ يې دغو خلګو هم زياتره په خښم راکاۇ- ظاهره خبره ده چي په خښم کي عقل سم کار نۀ کوي ، نو زما سوال به هماغه شان پاته شو او يا به ترې نور نور سوالونه هم وزوکېدل- ډېر وخت وروسته چي کله له مانه ، د پروفېسر په حېث تر ليکچر وروسته ، يو طالب علم همدغه سوال وکړ نو مي دفتر ته  رااووست ، چای  مو  سره وڅکلې ، بحث مو

ورسره وکړ ، چي مطمئن شو نو يې اجازت واخست روان شو- دے خو ولاړ مګر زۀ په دې فکر شوم چي که د خلګو په سوالونو کي دغومره مماثلت شته لکه چي يې په سرونو او دماغونو کي دے ، نو يې بيا د توپير اصل سبب څۀ دے چي څوك فلسفي ، څوك اديب ، څوك شاعر او څوك ساينسدان دے- مطالعه يې بېله بېله ده او که بيا څۀ بله وجه ده ؟ چي دغه خلګ په هماغه لار روان شي کومه چي دوي کله سوچلې هم نۀ وي- په دې مضمون کي مي د دغه شان ډېرو سوالونو ځوابونه لټولو کوښښ کړے دے-

د خلګو سرونه واقعي سره ورته دي او دماغونه يې هم په تالۀ څۀ ډېر فرق نۀ سره لري- په عام ژوند کي يې د کار کولو طريقه په ظاهره يو رنګه ده ، خو بيا هم پر ذهني سطحه لوی توپير پکښې ليدل کيږي- دا ځکه چي دماغ او ذِهن بېل بېل څيزونه دي- لکه مخکي چي د فکر تر عنوان لاندي بحث ورباندي وشو ، دماغ د انسان د نورو اندامونو په شان يو مادي څيز دے چي دبېلا بېلو برخو مشاهده يې په انساني سترګو ممکنه ده او ذِهن غېر مادي شے دے چي انسان ترې بې شمېره کارونه اخلي- د ذهن په حقله خو د فکر ، احساس او يادانښت تفصيل وړاندي کړل شو مګر دعقل ، دانش ، ذهانت او پوهي مجموعي تاثر نور بحث هم غواړي- ولي چي همدغه اړخ يې د پوهانو او تخليق کوونکو د پام وړ دے- فکر مثبت هم کېدلای شي او منفي هم خو د انسان عقلي نظام د ذهن د مثبت کړني مظهر دے- معنا دا چي عقل د انساني ذهن يوه وړه غوندي

برخه ده او د کار کولو يې هم يوه محدوده دايره ده چي تر هغي په آخوا يقين ورباندي نۀ شي کېدلای- دغه دا يره د سپوږمۍ د شپول په شان ده چي د ذهن پر آسمان يې په آساني مشاهده کېدلای شي- په خرګندون نمبر۹ کي د وضاحت د پاره دغه شپول په خيالي کرښو ظاهر شوے دے- د عقل دکار کولو د حدونو تعيُن هم په نفسياتي توګه ممکن ښکاري- خو د شپول د بېلا بېلو رنګونو په شان د دغه نظام هم د ذهن پر آسمان خپلي بې شمېره وړې وړې دايرې دي چي يوه په بله کي دننه يو پېچلے نظام جوړوي- دا د ژوندانۀ په وَربځ کي



خرګندون نمبر ۹ د عقل شپول

يو ښکلے منظر وړاندي کوي- د هر سړي د عقل خپل شپول وي ، خپل يې رنګونه وي او خپلي بېلي دايرې لري- د ګوتي د نشان په څير او د څېرې په شان د هرچا عقل دبل سره توپير لري ځکه يې د عقل شپول هم له بله بېل وي- که څوك دا غواړي چي په خپل عقل ځان خوشحال خان کړي نو دا امکان نهٔ لري ولي چي د هغهٔ دعقل شپول بېل ؤ او په داشپول کي د رنګونو ترتيب بس هماغه ؤ چي يوازي د خوشحال په برخه ؤ- همدغه راز بل ميرويس نيکه يا بل احمد شاه بابا جوړېدل د چا خواهش کېدای شي خو په عملي توګه د دهٔ د عقل خپل بېل شپول دے او د دغه شپول بېلي دايرې دي اوبېلا بېل رنګونه پکښې ليدل کيږي- که څهٔ هم يوکس د خپل علم او يا تجربې پر بنسټ له بله څه نهٔ څهٔ اثر اخلي خو د دهٔ شخصيت يوازي د دهٔ په خپل عقلي جوړښت پوري اړه لري- ولي چي د نفسياتو تر اصولونو لاندي د دهٔ د ذهن خپلي بېلي تخليقي سانچې[1] دي-

د شعور دغه بېل عقلي جوړښت او د لاشعور دغه بېلي تخليقي سانچي ، چي يو کس له بله ډېر بېل او ممتاز په ښکاري ، په اصل کي د هر سړي د ذهن مُهمي برخي دي- د انساني ذهن پر ساخت خو څهٔ نهٔ څهٔ بحث وشو ، لاکن د کس او سړي تر منځ توپير ښايي چي د بحث وړ نور هم ډېر اړخونه لري- سړيتوب بېلا بېلي سطحې لري او دا د ويښتيا او ځان پېژندني سره سره د هر سړي د عقل په خپل بېل شپول پوري هم اړه لري- په خپل شعوري کوښښ انسان د دغه شپول بې شمېره دايرې په کار راوستلای شي او بېلا

بېل رنګونه پکښې ډکولای شي- همدغه يې و تخليق ته جُدا رنګ او بېل مقام ور بخښي- د دۀ احساس ، خواهشونه ، خيالونه ، تصورات ، جذبات ، يقين ، اراده او نور ډېر څۀ په همدغو سانچو اړه لري چې دے پکښې بېلا بېل رنګونه ډکوي لګيا وي- په مادي توګه يا د فزکس تر علم لاندې د دغو سانچو بشپړ وضاحت په آساني سره نۀ شي کېدلای ، ولې چې ددې سانچو بنسټ پر طبيعات نۀ بلکې د نفسياتو پر اصولونو ولاړ دے -

داسې برېښي چې تصوّر د شعور عکس دے او خيال د لاشعور- د انسان تصوّر د ژوندانۀ د بېلا بېلو تجربو په رڼا کې واقعات يا ځيزونه د تحليل تر مېچن باسي او بيا يې په نتيجه هم رسوي ، خو خيال د تجربې تر دايره دباندې هم الوت کوي لګيا وي- لکه چې په څرګندون نمبر ۱۰ کې ښکاري ، عقل په انسان کې هغه بشپړ مثبت

عقل په انسان کې هغه بشپړ ذهني نظام دے چې د فکر احسا س او علم په ګډون د ژوندانه په کړه وړه کې د ا ستدلال په ګچه معقوليت پيدا کوي

څرګندون نمبر ۱۰ عقل څۀ دے ؟

ذهني نظام دے چي د فکر، احساس، او يادابښت په ګډون د ژوندانۀ په کړۀ وړۀ کي د استدلال په ګچه معقوليت پيدا کوي- دغه مثبت اړخ او معقوليت يې هغه څيزونه دي چي بايد ټينګار ورباندي وشي او د فکر څخه يې توپير په څرګند شي- فکر مثبت هم کېدلای شي او منفي هم، خو عقل په انساني ذهن کي يوازي د مثبت کار کولو نظام دے- دا يو داسي پټ او پېچيلے سيستم دے چي ددۀ وکړنو ته ښکلا او معقوليت وربخښي- که مثبت وي او که منفي، موږ په خپل ټول عمر کي دخپل ذهن د پټي خزانې لسمه برخه لا هم په عملي توګه په کار نۀ شو راوستلای- د ذهن دغه بشپړه پټه خزانه د ذهانت په نامۀ يادېږي، او ذهانت[2] په انساني ذهن کي هغه پټ صلاحيّت دے کوم چي د يادابښت يا تجربې په موجودګي کي د محسوسولو، فکر کوولو، استدلال کوولو، تحليلولو، او فېصله کوولو موجب ګرځي-

د عقل خپله بېله دنيا ده چي په تواتر سره پراخيږي[3]- که د خدای د لويي خدايي پلټنه وي او که يې ديوې خاص برخي جاج اخستنه، عقل هر کله په خپل مثبت کار کي بوخت ښکاري- انسان له خپله عقله په ژوندون کي په زرګونو علمي او عَملي کارونه اخلي- که يوې خوا ته مثبت فکر او ژور احساس د نظر زاويه سمَوي، نو بلي خوا ته د علم او تجربې په رڼا کي د دوی تر منځ د غوره استدلال او معقوليت پر بنسټ يو خاص توازن قايمَول د عقل کاردے- کله چي فکر د تجربې په رڼا کي د احساس سره يو ځای شي او د ژوندانۀ د اړو

مسئلو د معقوله حل په هلو ځلو شي نو بيا عقل بلل کيږي- ځکه خو خوشحال بابا[4] وايي چي:

په جهان کښې به يو يو وي
چي هنر يې د کېميـا زده

انسان له ډېره وخته دخپل ذِهن په اړه پر بېلا بېلو مفروضو کار کوي- لکه مخکي چي يې ذکر وشو، په اولسمه پېړۍ کي فرانسوي فلاسفر ريني ډسکارټس[5] دا مفروضه وړاندي کړه چي د انسان په اړه فقط دوه حتمي عناصر دي چي يو بدن دے او بل ذِهن يا روح- دے د دغو دواړو تر منځ د تعلق په وضاحت کي په بشپړه توګه کامياب نۀ شو ځکه نو پر دغه موضوع بحث دوام درلود او په نولسمه پېړۍ کي چي کله د فلسفې سره سره د نفسياتو علم هم ډېره وده وکړه، نو د ذِهن پر بېلا بېلو کېفياتو[6] کار تېز کړل شو- اوّل فرائيډ[7] او بيا ژونګ[8] ورباندي ډېر کار وکړ- د کمپوټرساينس د پرمختګ سره 'مصنوعي ذهانت'دا هم ثابته کړه چي لوی شمېر ذهني کارونه په کمپوټر هم کېدلای شي ځکه نو ذهن له روح څخه بېل څيزدے ولي چي روح تر دغسي مشيني تسخير دباندي څيز دے- همدغه راز امريکن آنتروپولوجيسټ[9] ايزيلې لورن په کال ۱۹۶۲ کي په خپل يوۀ مُهم کتاب The Mind as Nature کي انساني ذهن ته د فطرت نوم ورکړے ؤ، خو دغه شان وضاحتونه پوهانو قبول نۀ کړل بلکي د دغو علمي مسئلو فېصله يې راتلونکو نسلونو ته ور وسپارله-

د ذهن ، فکر ، احساس ، يادابښت او عقل بحث ډېر پېچلے بحث دے- نۀ د يوۀ عنصر نظريه د دغي مسئلې بشپړ وضاحت کولای شي او نۀ د دوو عناصرو نظريه- که څۀ هم د دوو عناصرو نظريه په عقلي توګه زياته معقوله ښکاري خو د اتلسمي پېړۍ د يوۀ عنصر په نظريه[10] کي د آيرلېنډ فلاسفر 'جارج بارکلې' هم خپل فکر حقيقي بولي- دے دکاينات هر څۀ له ذهني يا روحاني عنصر 'شعور' څخه ترتيب شوي ګڼي- د دۀ په فکر د څيزونو طبيعي بحث يوازي د تجرباتو د ترتيب نوم دے کنې دا هم د روحاني عنصر بېلا بېل شکلونه دي- دۀ د خپلي نظريئې د صداقت په اړه بېلا بېل دليلونه لرل- د دۀ يو ډېر مشهوره قول ۋ چي :

"Truth is the cry of all but the game of few"

مطلب دا چي ريشتيا د ټولو غوغا ده خو لوبه د چا چا وي-

انساني ذهن د خپلو جبلي خاصيّتونو سره سره مثبت خواص هم لري او عقل يې د دغو خواصو پنګه ده- دا په يادابښت کي د ټول عمر د تجربې په موجودګي کي د فکر او احساس ترمنځ يو خاص توازن پېدا کوي- دغه توازن په اصل کي معقوليت دے او معقوليت د عقل د حاصل په معنا اخست کيږي- دا هغه حقيقت دے چي د استدلال په قوت په ټولنه کي اعتدال راپاخوي او د سماجي انصاف لار ټاکي- پر بَره سطحه د خلکو فکري تربيت په

ټولنه کي معقوليت پيدا کوي او د معقوليت تقاضا داده چي د خلګو و اجتماعي ژوند ته تر انفرادي مادي ګټو زيات اهميت ورکړ شي ، ولي چي دغه يو اعلیٰ مقصد دے-

لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، د انساني ذهن مثبت خاصيَتونه عدم وجوديّت ، داخلي موجودګي ، اراده ، انتخاب ، آزادي ، تخليقي صلاحيت او مقصديت دي- دا ټول د عقل په جوړښت کي په عملي توګه يو له بله سره تړلي دي- په څرګندون نمبر ۱۱ کي د لوستونکو د اسانتيا د پاره د دغو بېلا بېلو ذهني




څرګندون نمبر ۱۱ د انساني ذهن څو مهم خاصيتونه

خاصیّتونو یوه خاکه وړاندي کړل شوې ده چي په یاداښت کي ځای ومومي او یو له بله سره یې پر خپل منځي تړاو باندي غور هم وشي- د انساني ذهن یو مهم مخفي خاصیت عدم وجودیت دے- که څۀ هم هر وګړے د خپل فطري مېلان په ترڅ کي د دغه صلاحیت څخه کار اخلي خو ادراک یې ورته نۀ وي- د خپلو بېلا بېلو خاصیتونو په وجه په خپل درون کي د ذهن موجودګي احساسېدلای شي- د دغي داخلي موجودګۍ په برکت یو کس په ځان کي دننه په خپلو اِرادو ، فکرونو ، احساساتو ، خواهِشونو ، جذبو او یاداښتونو بشپړه آګاهي لري- دے ښۀ خبر وي چي د دۀ په ذهن کي د ننه څۀ څۀ روان دي- د انساني ذهن یو بل مهم خاصیت اراده ده دکوم په ذریعه چي دے د حق او فرض تر منځ توازن ساتلای شي- د حق دپاره پاڅېدل او بیا عملي هلي ځلي کول د انسان په آزاده اراده ممکن دي ، ورسره ورسره د خپل فرض ادراک هم د ارادې د تشکیل مهمه برخه ګڼل کیږي- د ښۀ او بد تمیز بیا انسان د انتخاب په قوت سره کوي- دے په خپلو خیالونو کي د ښۀ او بد تر منځ په خپل دغه قوت توپیر کوي او د خپلي ذمه وارۍ احساس ژوندے په ساتي- په انساني ذهن کي آزادي ، اِراده او انتخاب واړه سره ملۀ وي او په ګډه ستر انساني ارزښتونو ته دوام وربخښي- انسان د خپل عقل او شعور د فطري قوت اظهار د همدغي آزادۍ په ذریعه کوي- د هغه څۀ انتخاب په آزاده توګه کوي کوم چي یې معقول ګڼي- د خپل آزاد او ځانګړي انتخاب په ذریعه د ژوندانۀ و بېلا بېلو او پیوسته هلو ځلو ته دوام

ورکوي- د انسانيت معيار د کس د آزاد انتخاب او آزادي اِرادې په حساب دے ځکه نو په ژوندانهٔ کي يو انسان له بله څخه هر کله بېل ښکاري- دا د انسان آزادي ده چي دے کله کله دخپلو ټولنيزو حالاتو خلاف بغاوت وکړي او کله خو تر دې حده وي چي د خپل فطرت خلاف هم فېصله وکړي ، لکه چي د ځان وژني يا خود کشۍ فېصله يوازي انسان کولای شي- د آزادۍ دغه قوت په بل هيڅ يو څيز کښي نهٔ ليدل کېږي- ځکه خو د آزادي اِرادې په قوت او آزاد انتخاب په ذريعه انسان تر نورو ټولو مخلوقاتو افضل ګڼل کيږي- کله چي انسان د ماحول تراثر لاندي دټولني درد محسوس کړي نو يې په خپل تخليقي قوت د اظهار طريقې لټوي- يوې خوا ته انساني ذهن په خپل فطري ماحول قناعت نه شي کولاي ځکه نو د نوو نوو تخليقاتو په هلوځلو وي- بلي خواته د انسان نفسياتي جوړښت څهٔ داسي دے چي هر وخت يې په اضطراب کي ساتي او همدغه اضطراب يې په تخليق کولو آماده کاندي- انسان د خپلي ټولني درد محسوسوَلای شي او دغه بېل احساس يې هم د تخليق موجب شي- په ذهني صلاحيتونو کي مقصديّت يو داسي څيز دے چي واړهٔ نور صلاحيتونه هم په کار راوستلای شي او د يوهٔ بشپړ عقلي نظام په توګه کار ترې اخستای شي-

د انساني ذهن په شان د عقل په اړه هم د پوهانو بېلا بېلي نظريئې دي- په کال ۱۹۰۴ کي چارلس سپېرمېن[11]د عمومي عقل نظريه وړاندي کړه- د دهٔ په نظر عقل د ذهن يو عمومي صلاحيت

دے چي د هر کار د اخستلو د پاره د انسان په کار ورځي- د دۀ خيال ۇ چي عقل په عمومي توګه په آساني سره ګچه کېداى هم شي- دا يې څرګنده کړه چي د اختصار د پاره دي "g" د عقل د پېمانې په توګه استعمال کړل شي او په ساينسي توګه دي دخلګو د عقل معيار په ګچه کړل شي- يعني د هر چا چي "g" زياته وي نو هغۀ به دغومره عاقل ګڼل کيږي-

په عيسوي کال ۱۹۳۸ کي لوئز ترستهون[12] د بېخکي ذهني صلاحيتونو عقلي نظريه وړاندي کړه- د دۀ نظر دا ۇ چي د عقل په جوړښت کي اووه (۷) بېخکي ذهني صلاحيتونه برخه اخلي- اوّل د لفظونو د ادا کوولو صلاحيت ، دوهم د ژبي د روانۍ صلاحيت ، دريېم د شمېري يا د نمبرونو د شمېرلو صلاحيت ، څلورم د يادانښت صلاحيت ، پنځم د ادراك صلاحيت ، شپږم د استدلال صلاحيت ، اووم د پېشبينۍ صلاحيت- د دۀ په نظر چونکي په همدغو صلاحيّتونو معقوليت پېدا کېداى شي ځکه نو همدغه د عقل بنيادي اجزا دي-

په کال ۱۹۶۶ کي رېمنډ کېټل او جان هارن د مايع عقل[12] او بلوري عقل نظريه وړاندي کړه- د دوى په نېز مايع عقل د عقل حياتياتي برخه ده چي د عمر په لومړۍ حِصه کي يې ماشومان او ځوانان له خپل ماحول څخه ترلاسه کوي- دا د عمر په تېرېدو سره ورو ورو کميږي- بلوري عقل يې هغه برخه ده چي د عمر په وروستۍ حصه کي يې پوهان او رهبران له خپلي تجربې څخه حاصِلوي او دا د

عمر سره کمیږي نۀ بلکي په تواتر سره زیاتیږي- په یاداښت کي د خوندي کولو په موخه يې خاکه په دې لاندي څرګندون نمبر۱۲ کي وړاندي کړل شوې ده-




څرګندون نمبر ۱۲ د بلوري او مایع عقل توپیر

په کال ۱۹۸۳ کي هاورډ ګاډنر[12] د بېلا بېلو عقلي صلاحیتونو نظریه وړاندي کړه- دۀ ذهانت پر اوو قِسمونو وېشلے دے چي ژبنے ذهانت ، موزیکل ذهانت ، استدلالي ذهانت ، کایناتي ذهانت ، ذاتي ذهانت ، او ټولنیزذهانت پکښې شامل دي- په کال ۱۹۸۵ کي رابرټ سټرن برګ[12] د عقل په اړه درې اړخیزه نظریه وړاندي کړه- د دۀ نظر دا ؤ چي د عقل درې برخي دي چي د تحلیلي ،

تخليقي او عَمَلي ذهانت په نومونو يادېږي- لکه چي په څرګندون نمبر۱۳ کي ښکاري ، تحليلي عقل تحقيقي رويه پېدا کوي او د انسان د پلټني ، استدلال او نتيجه اخذ کولو صلاحيت ته ويَل کيږي- تخليقي عقل وتخليقي رويې ته وده ورکوي چي پر حساسيّت ، بصيرت ، ماورائيت او تخليقي قوت مشتمل دے- او په عملي عقل د




څرګندون نمبر ۱۳ د انساني عقل درې مهم قِسمونه

پوهني په ذريعه انسان د اعتدال ، موزونيت او مطابقت پېدا کولو هلي ځلي کوي ځکه نو تنقيدي رويه هم وده په کوي-

انساني ذهن که څۀ هم د دماغ په شان څۀ واضح ساخت نۀ لري خو دکار کولو په لحاظ يې خپلي بېلا بېلي فېکلټۍ دي- هره فېکلټۍ يې د څۀ خاص کار تر سره کولو نظام لري- د نفسياتو په

اصطلاح د ذِهن درې مُهمي فېکلتۍ شعور ، زېرشعور او لاشعور بلل کيږي- د شعور او لاشعور بحث به مخته په بل څپرکي کښې جاري ساتو خو دلته دومره وضاحت کول غواړم چي شعور د ذهن هغه وړه برخه ده کومه چي د انسان په اراده کي دننۀ ده او دے قُدرت ورباندي لري چي په خپله آزاده اراده کار ترې واخلي- دا تر ډېره حده هماغه څيز دے کوم چي له پېړيو راهسي د عقل په نامۀ مسوا دے- د ټول انساني ذِهن لسمه حِصه د دۀ تر خپل ارادي کنټرول لاندي ده ، پاته ۹ حِصې يې لاشعور دے ، پَرته له يوې بېخي وړې غوندي حِصې چي زېر شعور بلل کيږي- زېر شعور نۀ خو په بشپړه توګه د انسان تر قدرت لاندي دے او نۀ بلکل آزاد- که انسان کوښښ وکړي نو يې پرځينې ځايونو تر خپل کنټرول لاندي راوړای شي- لاشعور د ذهن تر ټولو غټه او مُهيمه برخه ده چي نۀ خو يې عام انسان ته ادراك شته او نۀ کنټرول ورباندي لري ، مګر هغه واړۀ کارونه چي د انسان په ژوندانۀ کي د ارزښت وړ دي په همدغه حِصه پوري اړه لري-

کۀ څۀ هم په عمومي توګه خلګ د فطرت ، ماحول ، او تاريخ غوندي خاريجي جبري عواملو تر اثر لاندي وي خو د علم ، عقل ، او شعور په ذريعه ترې وتلای شي- همدغه راز د نفس غوندي داخلي جبري څيز څخه ، چي دټولني په هر کس کي وجود لري او هرکس و دې ته اړ ساتي چي د انسانيت له لاري يې چپ کړي ، آزادي په ځان پېژندنه ، آزاده اراده ، اخلاص ، قرباني اومينه ممکنه ده[4]- لاشعوري قوّتونه لکه ذهانت ، برداشت ، يادانښت ، فکر ،

احساس ، توَجو ، جذبه ، خواهش ، ادراك ، اخلاق ، بصيرت ، يقين ، اراده او همدغه راز نور ګڼ شمېر عوامل دتخليق په بېلا بېلو مرحلو کي د انسان په کار ورځي او ژوندانهٔ ته يې معنا ورکوي- کله کله چي شعوري هلي ځلي او عقلي دليلونه د خواهِش د تسکين په اړه منطقي جواز ورنهٔ کړي نو بيا خواهش له عقله په بغاوت کولو آماده شي او لاشعوري قوّتونه په کار راولي- لاشعور د بشريت څخه د انسانيت تر معنوي سطحي د رسېدو په مشکل سفر کي د کس مدد کوي او په دغه اړه دبې شمېره امکاناتو دموجودګۍ پته ورکوي - عقل او شعور کله کله د عزم په غلامي هم آماده شي ولي چي د عزم په اړه عقل يو سطحي څيز ښکاري- که څهٔ هم عقليت ځان لره يوه غوره فلسفه ده خو هره مسئله يوازي په عقل نهٔ شي حل کېداى ، ځکه نو د لاشعوري قوّتونو ضرورت هم ورته وي- د بېلګې په توګه احساس يولاشعوري څيز دے او په نتيجه کي چي يې کوم خيالونه راپاڅېږي د هغو په ترتيب کي شعور هم برخه اخلي- انساني فکر تر ډېرو بېلا بېلو مرحلو وروسته يو خاص نظم پکښې پېدا کوي او يو نوے عمل په وجود کي راوړي- يعني کومه يوه خاص پېښه چي موږ په سترګو وينو هغه په ذهن کي احساس را پاڅوي او دغه احساس بيا د فکر تر سايه لاندي د تخليق موجب شي-

د انساني ذهن پر آسمان بې شمېره ستوري دي- دغه هر ستورے يو ستر ذهني صلاحيت دے چي يوازي د انسان په نصيب کي ښکاري- په دغو سترو ذهني صلاحيتونو کي يو شمېر هماغه دي

چي له ازله د انسان په خمير کي دي او بله ډله هغه ده چي د انسان په ماحول او تاريخ پوري اړه لري- په دغو صلاحيتونوو کي منفي او مثبت دواړي ډلي شته-

کۀ څۀ هم انساني عقل د ذهن د مثبت کړني مظهر دے خو دا خبره هم حتمي نۀ ده ولي چي "عقل په نوو نوو تجربو کښې د زړو جبلتونو اولنۍ سادګي او د اسلافو په کړو آمادګي په شعوري توګه د بدلېدو په هلو ځلو ښکاري- لرغونے اخلاقي نظام او دژوندانۀ پاخۀ پاخۀ اصولونه د مصنوعيت په اوبو مينځي- داسي برېښي چي علم څومره زياتيږي او عقليت وده کوي هغومره په ټولنه کي مفاد پرستي او فراډ زياتيږي"-[10] ځکه نو عقيده يا يقين د انسان په ذهن کي د يوۀ بل ستر صلاحيت په توګه منل کيږي- په دغه يقين انسان د ډېر څۀ کولو قوت مومي- د انسان معنوي سطح هغه ده چي دے تر نورو مخلوقاتو افضل په ګڼل کيږي او دا هم د څو بېلابېلو ذهني خصلتونو په وجه ښکاري- ځان پېژندنه ، آزاده اراده ، دانتخاب قوت او د تخليق صلاحيت د انسان د مادي او روحاني تجربو سر چنې دي- د انسان ارزښت په همدغو سترو ذهني صلاحيتونو پوري ړه لري- فلسفه ، مذهب ، فن ، ادب ، سائنس اونور ټول علوم د همدغو خاصو انساني خويونو په موجودګي کي مخ په وړاندي روان دي- چونکي دغه خصلتونه په خلګو کي يوشانتي نۀ وي نو يې دانسانيت پر سطحه ' تناسب ' يو انسان له بله بېلوي-

په حواسو کي نظر يا ديد يو ډېر مُهم ذهني صلاحيت دے چي هر انسان د خپل خواوشا ماحول مشاهده په کوي- د سترګو کار خو يوازي د ماحول عکس تر ذهن پوري رسَول دے ، د دغه عکس پلټنه او بيا يې په نتيجه کي يو معقول عمل کول د ذهن يو ستر مخفي صلاحيت دے[13]- سترګي د ذهن د دروازو حېثيت لري مګر د نظر يا ديد ذهني صلاحيت د سر په شا کي وَمزغي ته نژدې د دماغ په وروستۍ برخه کي دے- ذهن د سترګو تر دروازو وخارجي دنيا ته ګوري ، مشاهده يې کوي او بيا يې په داخلي دنيا يعني لاشعور او شعور کي محسوسوي او پَلټي يې- تر پلټني وروسته يې په بېلابېلو طريقو د ردِعمل اظهار کوي- ځکه خو موږ دا وايو چي انسان پر مادي او غېرمادي برخو تقسيم دے او دلته يې خارجي دنيا مادي ده او داخلي يې غېر مادي- موږ خو د علمي بحثونو پر ځای بس د خپلو خواهيشونو اظهار کوو لګيا يو- که د مذهب پر نامهٔ چا پر عقيده تر حد زيات اصرار او ټينګار وکړ نو موږ احتجاجاً د بې باکه ماده پرستۍ په تبليغ لاس پوري کړو- حالانکه دغه وروستے فعل هغومره لوی جهالت دے لکه لومړے- نوې فلسفه هم انسان غوندي پر دوو پښو ولاړه ده ، يوه پښه يې خارجي مادي دنيا ده چي د کاينات د مشاهدې څخه تر حقيقت پوري د رسېدو په هلو ځلو ده او بله يې داخلي دنيا ده چي د يقين څخه شروع کيږي او د شعور ، لاشعور ، حِسياتو او خيالونو په ذريعه د حريت ، قوميت ، عېنيت او روحانيت تبليغ کوي-

شعور د ژوندانهٔ په تورو تيارو کي د منطق په قنديل لاره وړي لګيا وي ، خو د دغه قنديل په ذريعه تر خپلو قدمونو په آخوا د ژوندانهٔ ډېري کمي لوړي او ژوري صفا ښکاري- ځکه نو يوازي پر منطق يقين نه شي کېداى ولي چي منطقي استدلال پر هغو آرزوګانو هم مشتمل وي کوم چي د عقل په لباس کي د تکميل په هلو ځلو وي- موږ چي په منطقي توګه کوم حقيقي او غېرجانبدار خيالونه وړاندي کوو د هغو په ريښو کي هماغه اصولونه وي کوم چي زموږ د ټولنيزو او قامي خواهيشونو مطابق وي- ژوندون خو تر منطقي دلايلو ډېر اوچت يو همه وخت متحرك ځيزد ے-

لاشعور د احساس په رڼا د ژوندانهٔ په همدغو تيارو کي خپل سفر ته دوام ورکوي- احساس د روح هينداره ده او حقيقت د مربوط احساس نوم د ے- فلسفه د عقل او احساس د امتزاج تصديق کوي- حواس د خيال د صحت ضمانت ورکوي- هرکس څهٔ کارونه په شعوري هلو ځلو کوي خو زياتره د متضادو لاشعوري احساساتو سره مخامخ وي- د ځينو خلګو په فکرکښي شعوري عنصر زيات وي خو ځيني داسي هم وي چي د سرمستۍ څو لحظې د ژوندانهٔ تر ټول شعوري استدلال خوندوري او مغزني ګڼي- زهٔ پخپله د شعوري استدلال قدر کوَم خو منطق د انساني ذهن پر اسمان د کروړونو ځلاندو ستورو څخه فقط يو ګڼم ، ولي چي عقل پخپله هم همېشه غېرمتعين پاته شو ے د ے - منطق مثبت او منفي دواړه اړخونه لري او په دې زمانه کي خو دا د استدلال په دسمال کي د پېچلو

خواهيشونو نوم پاته دے- زهٔ د انسان په حېث په دې حقيقت هم خبر يم چې د بېلا بېلو لاشعوري احساساتو ارزښت څهٔ دے- دذهن پر اسمان بې شمېره ستوري لاشعوري احساسات دي چې تخليقي سلسله يې همه وخت روانه دوانه ده- همدغه وجه ده چې ما لره د انسانيت احساس تر ځان غوندي ژوندي انسان ډېر اوچت دے- مولانا جلال الدين رومي[14] وايي:

آزمودم عقلِ دور اندېش را
بعد ازين ديوانه سازم خوېش را

د انسان عقل چې پر کوم ځای درېږي هغه مقام نهٔ ابتدايي وي او نهٔ آخري- ځکه خو دا وېَل معقول ګڼم چې د انساني عقل د کار کولو يوه محدوده غوندي دايره ده چې تر هغي په آخوا بيا بشپړ يقين ورباندي نهٔ شي کېدلای- او دا چې دغه دايره د شپول په شان ده چې مشاهده يې د ذهن پر آسمان ممکنه ده- يعني د عقل د کار کولو د حدونو تعيُن پر نفسياتي اصولونو کېدای شي- عقل څهٔ داسي مشترك او حتمي حقيقت نهٔ دے چې په ټولو خلګو کي يو رنګه وي- دا بېلا بېلي درجې لري- لکه وړاندي چې يې ذکر وشو ، د هر انسان د عقل خپل بېل شپول وي ، خپل يې رنګونه وي او خپلي بېلي دايرې لري- د شپول د بېلا بېلو رنګونو په شان بې شمېره وړې وړې او رنګيني دايرې يې دي چې يوه په بله کي دننه يو خاص نظام

جوړوي- مطالعه ، مشاهده او تجربه يې دغه رنګونه او دايرې بدلوي رابدلوي- ځکه نو د يوۀ کس عقل دبل سره واضح توپير لري او د عقل شپول يې هم له بله بېل وي- عقل چونکي په انسان کي يو بشپړ مثبت ذهني نظام دے او د ژوندانۀ په کړۀ وړۀ کي د استدلال په ګچه معقوليت پېدا کوي ځکه نو دا هم حتمي څيز نۀ دے بلکي په تواترسره بدلېږي لګيا وي- د دغه نظام په پشپړتيا کي او د نظر د زاويئې په سموالي کي د احساس او تجربې هغومره اهميت دے لکه چي د غوروفکر دے- د نفس ، ماحول ، تاريخ او فطرت تر جبري حِصار د وتلو تدبير هم يوازي په عقل نۀ کيږي بلکي تر ډېره حده په عقيده پوري اړه لري- احساس ، فکر ، تجربه او يقين واړه د جِبلت څخه تر انسانيت پوري د رسېدو د لارو تعيُن کوي-

## اخځليك


1- ګا رډنر هاورډ ، د ذهن سانچې (Frames of Mind)
لسم اېډيشن ، بېسيك بكس (Basic Books) ، ۱۹۹۳-

2- تها مس بالډوين ، ' د ذهن پلټنه : يو تعا رف '۱۹۹۴
(Introduction to The Analysis of Mind)
برټرېنډ روسل ' روټلېج نسخه ، ۱۱ نيو فيټر لېن ، لندن ، ۱۹۹۵

3- برټرېنډ روسل ، The Analysis of Mind يعني
'د ذهن پلټنه' ، د روټلېج نسخه ، ۱۱ نيو فيټر لېن ، لندن ،۱۹۹۵

4- خوشحال خان خټك ، ' دخوشحال خان خټك كليات '
اسد دانش مطبعه كلوله پشته ، ملي ماركېټ كابل ۲۰۰۸-

5- ګاكروګر ، سټيفن ، ( Descartes:An Intellectual Biography )
يعني د ډسكارټس علمي سوانح ، آكسفورډ يونيورسټی پرېس ، ۱۹۹۷

6- سټرن برګ رابرټ ، Thinking Styles.يعني
د فکر کوولو طريقې ، کېمبرج يونيورسټۍ پرېس ، ۱۹۹-

7- موکن هاپټ ، ’ سيګمنډ فرايډ: د لاشعور پلټونکے ‘
(Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious)
آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۹

8- ژانګ کارل ګسټاؤ ، ’ Man and his Symbols انسان او د دهٔ
علامات ‘ ، ډبل ډې ، ۱۹۶۹ ، دوهم ا شا عت Laureleaf, 1997

9- ايزيلې لورن (Eiseley Loren) امريکن انتراپولوجيسټ ؤ چي ليکنه يې په
شاعرانه نثر کي کوله ، ځکه يې دغه فکر هم شاعرانه غوندي ښکاري-

10- ډيورانټ وِل ، The Pleasures of Philosophy
يعني ’نشاطِ فلسفه‘ ژباړن محمد اجمل ، فيکشن هاؤس
مزنګ روډ ، لاهور ، ۲۰۱۰ —

11- سپېرمېن ، Factor Analysis ، ۱۹۰۴ ببرته کتنه ۱۹۲۰-

12- سټرن برګ رابرټ ، Encyclopedia of Human Intelligence
دوهم ټوك ، مېکميلن ۱۹۹۴

13- کالوين ويليم ، How Brains Think, ، يعني دماغ څنګه کارکوي ،
د اشاعت کال ۱۹۹۶ Basic Books

14- محمد عبدالسلام خان ، ’ مولانا جلال الدين رومي ‘ حيات و افکار ،
سيټي بك پوائنټ اردو بازار کراچي ، د اشاعت کال ۲۰۱۲ .


* * *

# شخصیت او نفسیات

د فطرت دقانون سره سم هر یوځیز په څۀ نه څۀ توګه له بله بېل دے ، څکه خلک وايي چي د لاس ګوتي هم يو رنګه نۀ دي- هرکس ځان لره څۀ بېل خاصيَّتونه لري د کومو پر بنسټ چي دے له نورو خلګو ممتاز ګڼل کیږي- دا تر ډېره حده د دۀ په جِبلتونو، احساساتو، عادتونو او یاداښتونو پوري اړه لري- فکر، احساس او عمل غوندي ژور ذهني صلاحیّتونۀ هم په ټولو خلګو کي يو شانتي نۀ دي- شخصیّت یا پرسنَلیټي د کس د دغو ذِهني اِمتیازي خاصيَّتونو ینګه ده چي یوکس له هرچا بېل په ښکاري- په بله معنا شخصیت په بېلا بېلو حالاتو کي د یو کس د امکاني عمل او ردِعمل پېمانه ده[1]- د شخصیت په اړه له ډېره وخته علمي بحثونه دوام لري- زیاتره پوهان دا فکر کوي چي شخصیت تر ډېره حده لاشعوري ځیز دے او فرد ته یې پخپله څۀ ادراك نۀ وي- خو په نوو عِلمي څېړنو دا ثابته شوې ده چي شخصیت د کس د رَویې عکاسي کوي او روَیه په شعوري هلوځلو پوري هم اړه لري ، څکه نوپه علمي توګه دا شعوري او لاشعوري دواړۀ اړخونه لري- لاشعوري برخه یې زیاته ده او شعوري حصه یې کمه-

د انساني ذهن په شان شخصيّت هم ځان لره خپل بېل جوړښت لري- د نفسياتو نامتو ماهر فرائيډ[2] په نولسمه پېړۍ کي ايګو، سُوپر ايګو او اِډ د شخصيت د ساخت درې مُهيمي برخي ښووَلي وې- ايګو موږ د نفس يا 'خودي' په معنا اخلو، سُوپر ايګو د عِزتِ نفس په معنا او اِډ د شخصيت د واړو جبلي قوتونو مجموعه ده- په حقيقت کي د شخصيت دغي درې واړي برخي خپل خپل شعوري او لاشعوري اجزا لري- آئيډيا يا نظريه د شخصيت هغه برخه ده کومه چي تر ډېره حده لاشعوري ده- که څۀ هم د شخصيّت جوړښت په ډېرو عواملو پوري اړه لري خو داخلي موروثي او خارجي ماحولياتي عناصر يې په ساخت کي مُهم دي- ولي چي د ماحول تر خارجي اثراتو لمخه هم ماشومان د شخصيت په لحاظ بېل بېل ښکاري- ډېر ماشومان خنده رويه وي، ډېر ژړاند او ډېر بيا ښوراند وي- د ذهانت او طبيعت په حساب هم له اوله سره فرق په آساني پکښي ليدل کېدای شي- دنفسياتو ماهران ذهانت او طبيعت د شخصيت موروثي اجزا ګڼي- حيا او ندامت غوندي نوري ډېري برخي يې د ماحول څخۀ اخذ شوي معلومېږي- همدغه شان ډېر نور ټولنيز او کلتوري ارزښتونه د شخصيت په جوړېدو کي برخه لري[2]-

لکه چي په څرګندون نمبر۱۴ کي ښکاري، په عمومي توګه په ټولنه کي نفس، ضمير، او بصيرت د شخصيت اجزا ګڼل کيږي- نفس په ذهن کي د لاشعور هغه پنګه ده چي جبري ازلي او وجداني احساسات پکښي پراته دي او د خارجي عواملو تر اثر لاندي په کار




خرګندون نمبر ۱۴ د شخصيت اجزا

راځي- ضمير په انساني ذهن کي د شعور هغه داخلي قوّت دے چي د لاشعور په څۀ نۀ څۀ مرسته خارجي عوامل احساسوي او د نفس د داخلي پنګي په موجودګي کي يې پلټي او تحليلوي يې- دا تر ډېره حده و عزتِ نفس ته ورنژدې دے- بصيرت په ذهن کي د لاشعور هغه اوچته فېصله کونکې حِصه ده چي د شعور په مرسته په جذباتو او ازلي وجداني احساساتو کي داظهار کولو او يا نۀ کولو بشپړه فېصله کوي او د ارزښتونو پربنسټ ورته ترتيب ورکوي- بصيرت پر معنوي سطحه ومعرفتِ نفس ته ورنزدې دے- د بېلګې په توګه د حيا ، جزا او سزا تړاو د ضمير سره دے- د ميني ، بخښي ، اخلاص او پښېمانۍ بشپړ قوت په بصيرت پوري اړه لري-

لکه چي اعصابيات يا نيورولوژي د دماغ په حقله د مطالعې يو خاص مېدان دے او د اعصابي ناروغيو خپله بېله شعبه ده ، همدغه شان نفسيات يا سايکالوژي[3] د ذِهن د بېلا بېلو کېفياتو علم دے- دا يوازي د نفس مطالعه نهٔ ده بلکي د شخصيّت د واړو اِمتيازي خاصيَّتونو علم دے- لکه چي يې په خرګندون نمبر۱۵ کي صفا وضاحت شوے دے ، نفس پوهنه يا سايکياټري د انسان




خرګندون نمبر ۱۵ دنفس د مطالعې بېلا بېلي شعبې

د نفسياتي ناروغيو او د هغو د علاج تجويز کولو علم دے- شخصيت پلټنه يا سايکو انلايسيس هغه علم دے په کوم کي چي د شخصيت بشپړه پلټنه کيږي- او بيا دا نتيجه ترې را ايستل کيږي چي د دغه کس ذِهني کېفيات څهٔ دي او د دهٔ مېلان به کومي خوا ته وي- د شخصيت مطالعه يوازي د صحت په اړه مُهمه نه وي بلکي د ټولني د

هر کس د نظر د زاويئې جاج په همدغه نفسي تحليل يا سايکو انلايسيس ممکن دے-

د شخصيت پر ساخت تر بحث وروسته دا ضروري ګڼم چې د ټولني څخه د بېلا بېلو شخصيَّتونو څو مثالونه وړاندي کړل شي چې د مسئلې څۀ نۀ څۀ وضاحت په وشي- په ټولنه کي عام شخصيّتونه په بېلا بېل انداز ليدل کيږي- څوك لېوني ګڼل کيږي او څوك مکار-څوك ټګان دي او څوك ملنګان- د جهان پوهانو پر عالمي سطحه د بېلا بېلو شخصيّتونو شمېر کله لس او کله شپاړس[4] ښوولے دے خو زموږ په ټولنه کي يې تعداد ښايي چې تر دې هم زيات وي ، ولي چې تر بهرنيو مداخلتونو ، جنګونو اورپوکۍ او ورور وژني وروسته شخصيّتونه کله هم نارمل نۀ شي پاته کېداى- اوس په دې ټولنه کي بېلا بېل شخصيّتونه څۀ په دې ډول ليدل کيږي:

۱ - خښمي يا قهرجن
۲ - بېرندوکے
۳ - واوَڼے يا خوش باش
۴ - ناټکي يا ډرامېټك
۵ - ټپالي يا جاسوسي
۶ - سختګير
۷- شکي
۸ - شرمېدونکے

۹ - بې حيا
۱۰ - مغره يا مغرور
۱۱ - بېزاره

خښمي( Aggressive) كس پر وَړه خبره هم په خښم شي- خپله هره خبره په بل منل غواړي- نۀ د چا خبره اوري او نۀ يې منلو ته غاړۀ ږدي- هيڅ دليل ورسره نه وي خو بيا هم دا هيله كوي چي نور دي د دۀ خبره ومني- په لاشعوري توګه يې تر استدلال د خښم پخوا ډېر زور وي- خښم د دغه شان شخصيت په خپل كنټرول كي نۀ وي-

بېرندوكے (Anxious ) يا بېرېدونكے شخصيَّت همه وخت په نامعلومه خوف كي مبتلا وي- كله تر موټر سايكل د لوېدو خوف ورته وي او كله په امتحان كي د فېلېدو بېرۀ- كله دكښتۍ د ډوبېدو له بيري په درياب كي سفر نۀ كوي او كله په جهازكي له دې خوفه نه كښېني چي را اړتاو به شي- هسي ژوند په بېرۀ بېرۀ وربانديتېرېږي او دغه بېرۀ تر ډېره حده د دۀ تر شعوري كنټرول بهر وي-

واوَنے (Hypomanic) هر هغه كس دے چي په هرحال كي خوشحاله اوسي- دهري ورا ورابانے وي او هر كله خاندي- هر كس يې لكه خپل چي وي داسي ورسره آزاد ګاڼېږي- كله كله داسي برېښي چي دے د هر چا خپل دے خو ځوك يې خپلوي نۀ- دا شان

شخصيَّتونه په ټولنه کي خال خال وي- کله کله خلګ ځان ترې پېچي هم ، ولي چي په عمل کي يې درندتيا نۀ وي-

ناټکي ( Dramatic ) يا ډرامه باز شخصيتونه په اوسني دور کي ښېخي ډېر دي- کله يې نيمه ږېره خرېيَلې وي او نيمه ترې پاته وي- کله سرۀ وېښتان لري کله يې سپين کړي وي- کله کله داسي هم وي چي د بل جِنس په لباس کي په ګډا وي- کله شونډي تکي سرې کړي لکه ناوي ، کله ژړ والے په غوږ کي را روان وي- دوی په لاشعوري توګه د خلګو د توَجې تږي وي او د دغي تندی د ماتېدو په تګ او دو کي پخپله تماشه شي-

ټپالي(Reporter) شخصيتونه هم په ټولنه کي کم نۀ دي- دوی په لاشعوري توګه د يوۀ کس خبري بل چا ته په رسېدو کي خوند او اطمنان محسوسوي- زياتره خو خبري هم په خپل لاشعوري قوت بدلي کړي او په بل انداز يې تر دوهم فريق پوري ورسوي- خلګ د دۀ دغه کمزوري په وارو وارو ودۀ ته ور په ګوته کوي هم ، خو دا د دۀ د وس خبره نۀ وي چي دغه عادت پرېږدي- بل عادت يې دا هم وي چي که د دوو کسانو ترمنځ چيري خبري رواني وې نو په پټه يې د اورېدو په کوښښ کي وي او بې ضرورته دا پته لګول غواړي چي څۀ يې تر منځ روان دي- په دغه وجه نو جاسوسي شخصيت هم ورته ويل کيږي-

سختګير(Obsessive) شخصيت په خپل خيال اصول پرست وي ، د وخت پابند ، صفايي پسند او ځان خوښ وي- زياتره

يې د ټولني څخه بېل ځانګړي اصولونه وي او د دليل ګنجائش هم پکښي کم وي- پر نظريه او مذهب ډېر ټينګ ولاړ وي خو د نظر زاويه يې سمه نۀ وي- د خپلي نظريې په بُنيادونو يې هم سر نۀ وي خلاص- زموږ د ټولني د ښي او چپ لاس واړۀ انتها پسندان د همدغه ډلې سره تړاؤ لري-

شکي (Paranoid) هغه شخصيت دے چي هر عمل ته د شك په نظر ګوري- په ټولنه کي يې پر هر چا شك وي- په کور کي يې هم کله پر مور او کله پر ورور شك وي- پر زوی يې جُدا شك وي او پر لور جدا- د شك په وجه يې د هيچا سره هم اړيکي سمي نۀ وي- ژوند يې د شك په وجه زياتره تريخ وي-

شرمېدونکے (Schizoid ) هر هغه کس دے چي شرم يې د ټولني تر مُرَوجه حد دباندي وي- د خلکو سره يې ډېره کمه ناسته ولاړه وي او په خپل ژوند کي يکړ خوشحاله وي- په مجلس کي يې سا تنګيږي ځکه نو د خلګومنځ ته راتلای هم نۀ شي-

بې حيا(Psychopathic ) شخصيت دهغه چا دے چي په هيڅ يوۀ بد فعل هم نۀ شرميږي- غلا ورلره عام خبره وي ، دروغ يې په رګ رګ کرَلي وي او ښکنځل يې د ګفتګو ماغزۀ وي- زياتره بې ځايه ګائيږي او داسي لڅي خبري هم کوي چي د محفل د آدابو خلاف وي- د مشر ، کشر ، ځوان او زاړۀ څۀ خيال پکښې نۀ وي-

مغره ( Proud) يا مغرور شخصيَّتونه په ټولنه کي کم نۀ دي- د دوی د خوراك ، څښاك ، پوښاك او چال څخه غرور ښاځي-

كله كله موږ ګورو چي دوی وايي چي' تهٔ ما نهٔ پېژنې چي زهٔ څوك يم'؟ دغه سوال پخپله د دوی د شخصيت هينداره ده چي څهره يې په آساني پکښې کتل کېدای شي- مغره شخصيّتونه هر وخت د بل د سلام په انتظار وي ، كله هم چاته سلام نهٔ كوي- ځکه نو دا ويَل څهٔ بې ځايه نهٔ دي چي "په كور كې نهٔ كاك نهٔ پياز ، مغره په څهٔ دے شاه نواز"-

بېزار (Melancholic ) شخصيت د هغه چا دے چي نيم نيت يې پرځان بد وي او نيم پر جهان- همېش خفه خفه وي او هره خبره ورته بده ښكاري- ښهٔ يې هم تر نظر بد وي او مايوسي يې لكه چي په طبيعت كرلې وي-

په ظاهره داتول شخصيتونه په عامو خلګو كي ليدل كيږي خو دا به څهٔ عجبه هم نهٔ وي كه چيري دانشوران ، پوهان ، شاعران او اديبان دا ومني چي دوی د عامو خلګو په شان همدغسي يو نهٔ يو شخصيت لري- ولي چي اديبان هم له دغو خلګو څخه دي او كه بيا چيري د څهٔ توپير امكان وي نو ښايي چي'وجدان' به يې له نورو خلګو بېل وي- اديبان چي كله فكر كوي نو همدغه ذهن به په كار راولي د كوم چي موږ بالا ذكر وكړ- دا دليل چي په ابتدا كي دوی دكومو څيزونو ذكر په مبهم انداز كاؤ اوس په سايندس ثابت شول ، تر دې حده خو صحي دے چي د ساينسدان او اديب ذهنونه دواړهٔ انساني ذهنونه دي ، ځکه نو چي دكوم څهٔ فكر كوي بس هماغه به ممكن وي او كيږي به-

موږ ټول د همدغي ټولني غړي يو- دا ژوندون همدغه شان راباندي تېرېږي لګيا دے- زياتره خو دا پته هم راته نۀ وي چي څۀ بۀ کيږي- کله موږ د فطرت جبر ته حېران يو ، کله د تاريخ جبر ته او کله بيا د خپل نفس و جبرته- په همدغه حېراني کي دعمر راباندي ماښام شي[5]- زياتره د يوۀ نۀ يوۀ داسي جبر ښکار يو چي کوم څۀ کول نۀ غواړو ، هماغه کولو ته اړ يو- جنګ کوو ، نۀ پوهيږو چي د چا سره او د څۀ د پاره ؟ کله د بدل په اورکي سوځو او کله د نفرت ،د بُغض او وېري په ګړزونو پټ خرخړ مخونۀ ګرځو نۀ پېژندل کيږو- د پرسنليټي يا شخصيت په جوړښت کي دغه شان لوی شمېر جِبِلتونۀ ، عادتونه اواحساسات برخه لري- هر جِبِلت دبشر دحياتياتي نظام يو نفسياتي اظهار دے او د هر يوۀ سره يوه جذبه هم تړاو لري-

چونکي نفس ، ضمير او بصيرت د انساني شخصيت مهم عناصر دي ځکه نو د دانشورانو ، پوهانو ، شاعرانو او اديبانو دکار په معيار کي همدغه درې اجزا پلټنه غواړي- په ساينسي توګه خو به يې ډاکټران نفسياتي پلټنه وکړي مګر ادبي تنقيد هم د تحليلِ نفسي د تصوراتو څخه بايد چي خالي نۀ وي- که څۀ هم د ادب جمالياتي ، روماني او تاثراتي اړخونه په ادبي محفلونو کي زيات تر بحث لاندي راځي خو په جديد ادب کي د نفسياتي اړخ څخه ډډه هيڅ امکان نۀ لري[6]- د ذهن په ساخت کي چي د لاشعور څومره اهميّت ښکاري هغومره اهميّت د شخصيّت په پلټنه کي د نفس هم دے- لاشعور د هر ليکوال په ذهن کي د بېلا بېلو اړو محرکاتو وضاحت کوي او نفس

داديب په بصيرت کي ددغو محرکاتو رول ښئي- چونکي فکر، احساس او عمل غوندي ځيني ژور ذهني صلاحيّتونهٔ هم په ټولو خلګو کي يو شانتي نهٔ وي ځکه نو د شخصيت د بېلا بېلو اړخونو په جاج اخستنه کي او د تخليق د معيار په ټاکنه کي د نفسياتو مهم رول دے-

نتيجه دا چي د عقل او دانش علمي بحثونه بېلا بېل اړخونه لري خو په ساينسي توګه يې ډېري غوټي خلاصېداى هم شي[7]- نفس پر شعور، زيرشعور او لاشعور مشتمل دے او دا له دماغه ځکه بېل شے دے چي مادي ساخت يې نشته- شعور تر ډېره حده هماغه ځيز دے چي په روايتي توګه له پېړيو راهيسي د عقل په نامهٔ مسوا دے- عقلمند هماغه کس دے چي شعور او ادراك لري- د هر کس په شخصيّت کي درې ځيزونه مهم دي، يعني نفس، بصيرت او ضمير- کله چي دا درې واړهٔ په يوه دايره کي په څهٔ خاص ترتيب کار کوي نو بيا د دانش په معنا اخستل کيږي- دانش شعوري او لاشعوري دواړهٔ عناصر لري ولي چي نفس، بصيرت او ضمير واړه له همدغو دواړو عناصرو جوړ دي- دغه خاص ترتيب يې د تجربې پر بنسټ د راپاځېدلي احساس تر اثر لاندي تعميري فکر ته بلنه ورکوي او دنظر زاويه سموي- چونکي دانش د نظر سمه زاويه ته وېَل کيږي ځکه نو همدغه دانشوري ده چي کله کله د قلم له لاري د خپل شتون اظهار کوي- په ژوندانهٔ کي استدلال، ذهانت، عزت او آزادیٔ مُهم ګڼي او د اجتماعي فکر پر اساس د ټولني د بقا او د خلګو د ښېګړي پيوسته هلوځلو ته دوام ورکوي-

## اخځليك


1- هال كالوين او ګاډنر لينزې ، Theories of Personality يعني دشخصيت نظريئې ' ټېکسټ بك ، څلورم اې‌ډيشن ۱۹۹۷

2- هال كالوين ، A Primer of Freudian Psycology يعني 'دفرائيډ ابتدايي نفسيات ' ورلډ ۱۹۵۴ او ډيوټن ، ۱۹۹۹

3- ويلهلم مېكس ونډټ ، The Principles of Physiological Psychology يعني 'د فزيالوجيكل سايكالوژي اصولونه ' دوه ټوكه ۱۸۳ - ۱۸۴ انګرېزي ژباړه ۱۹۰۴

4- كرېكر اوټو او جېنټ ايم توېسن ، Type Talk at Work:

5- How the 16 Personality Types Determine Your Success on the Job ريوايزډ ايډيشن ، ډېل ، ۲۰۰۲

6- ډاكټر باقي دُراني ، 'د فكرټال ' ، صحاف نشرياتي موسسه ، كاسي روډ كوټه ، ۲۰۱۳

7- اېنډرسن جان ، كاګنيټيو سايكالُوژي ، (Cognitive Psychology)څلورم ايډيشن ، فري مېن ۱۹۹۵

8- اولډ هام ، جان ايم او لويز بي موريس ، نوے شخصيت خپل تصوير (The New Personality Self-Portrait: Why You Think, Work, Love and Act the Way You Do. Rev ed. Bantam, 1995) ريوايزډ ايډيشن ، بانټم ، ۱۹۹۵ —


★ ★ ★

# شعور او لاشعور

شعور څۀ دے؟ دا هغه سوال دے چې په هر پوهنتون کې يې ازانګۀ اورېدل کېږي- فلسفيان او د نفسياتو ماهران تر اوسه لا هم د شعور په اړه پر يوۀ واضح ټکي متفق نۀ دي خو بيا هم احساس ، فکر او يادابښت د شعور مُهمې برخې ګڼي- د ژوندانۀ په اوږدو کې چې کوم څۀ د انسان په تجربه کې راځي هماغه يې ورو ورو په يادابښت کې سره را غونډېږي- او بيا د وخت په تېرېدو سره د دۀ تر فکري نظام او داخلي احساس لاندې شعور ترې جوړيږي- د انسان يادابښت يوه داسې خزانه ده چې د ټول عمر يادونه پکښې پراتۀ وي- د بېلا بېلو افکارو او احساساتو سره سره ارمانونه ، خواهشونه ، هيلې ، وسوسې ، جذبې ، اميدونه ، غمونه ، خيالونه او تصورات هم پکښې خوندي وي- د ژوندانۀ د دغې قيمتي پنګې پر بنسټ د انساني شعور تشکيل کيږي-لکه مخکې چې يې ذکر شوے ؤ ، دانسان يادابښت[1] درې بېلا بېلې برخې لري- محسوساتي يادابښت يې د څيزونو تر ليدلو ، کتلو ، لوستلو او اورېدلو وروسته په درون کښې يو خاص

احساس راپاڅوي ، توجه يې را اړَوي او تر پلټونکي ياداښت پورې يې اثرات رسوي- دغه پلټونکے يادښت يې ډېر مهم دے ولې چې دا د پاخهٔ يادښت په مرسته دمعلوماتو پلټنه کوي ، په نتيجه يې رسوي او فېصله ورباندي کوي- د دغو معلوماتو مهمه برخه د فکري نظام تر پلټني وروسته 'کوډ' شي او بيا په پاخهٔ يادښت کي د سبا د پاره دتجربې په توګه جمع شي- د شعور تشکيل په همدغو جمع شوو بېلا بېلو معلوماتو کيږي- کهٔ څهٔ هم په ساينسي توګه دغه بشپړ ذهني نظام ته کوګنيشن يا ادراک ويل کيږي خو شعور يې په نتيجه کي د تشکيل تر مرحلو تېريږي لګيا وي-

د انساني دماغ او ذهن تر منځ د توپير سره سره د فکري نظام يوه بېله څانګه نفسيات[2] هم ده چي په نفس پورې اړه لري- او نفس کهٔ څهٔ هم د انساني ذهن سره ټينګ تړاؤ لري خو ځان له يې خپل بېل حېثيت هم شته- نفسيات د بېلا بېلو مسلسل بدلېدونکو ذهني کېفياتو جاج اخلي او د روحانيت سره د تړلو ډېرو اړو مسئلو ساينسي وضاحت هم کوي- لکه چي مخکي يې بيان وشو ، انساني نفس په عملي توګه پر شعور ، زېر شعور او لا شعور وېشلے دے- شعور د نفس هغه وړه غوندي برخه ده چي په عمومي توګه له پخوا څخه وعقل ته نژدې ګڼل کيږي- څوک چي له شعور څخه پُوره پُوره کار اخلي په روايتي انداز عاقل بلل کيږي او چي ترې کار نهٔ شي اخستای هغه کم عقله ګڼل کيږي- له پخوا څخه پر عقل او دانش اوږدهٔ بحثونه راروان دي او اوس هم دوام لري- خو د شعور د

جوړښت یا ساخت په اړه تر شپاړسمي پېړۍ پوري څۀ خاص علمي کار نۀ ؤ شوے- په همدغه پېړۍ کې وروسته انګرېز فلسفي جان لاك ( ۱۶۳۲-۱۷۰۴ ) دا نظر وړاندي کړ چي[3]:

"What we have direct experience of, are the contents of our own consciousness - sensory images, thoughts, feelings, memories and so on”

يعني کوم څۀ چي زموږ په خپله تجربه کي دي هماغه مو شعوري پنګه ده لکه تصورات ، خيالات ، احساسات ، يادداښتونه او نور ډېر څۀ- جان لاك د شعور ودغو واړو جزونو ته ' آيډياز' ويَل- د دۀ په نظر آيډيا هر هغه څيز ؤ چي شعور په آساني په کار راوستلای شو- بيا په عيسوي کال ۱۸۶۰ کي جرمن پوهاند ګستاؤ فِچنر دا مفروضه وړاندي کړله چي انساني دماغ پر دوو برابرو حصو تقسيم دے او داسي ښکاري چي د هري برخي به يې خپل بېل شعور وي- په جديدساينس دا ثابته کړله شوه چي تر ډېره حده د نوموړي ګستاؤ فِچنر مفروضه حقيقت ته نژدې ده- ولي چي اوس د مېرګي مستقل علاج د دماغ د دواړو برخو تر منځ دپُل غوندي يو اندام کارپس کېلوزم (corpus callosum ) په پرې کېدو ممکن دے- تر دغه وخته د نفسياتو بحث يوازي د شعور په اړه ؤ ، دلاشعور هيڅ تصور هم نۀ ؤ-

سيګمنډ فرائيډ[4] د نړۍ لومړے پوهاند ؤ چي د نولسمي پېړۍ په پای کي يې د نفس پلټني په باب خپله مهمه نظريه وړاندي

کړه- سره له دې چې ډېرو پوهانو يې تائيد ونهٔ کړ خو بيا هم دے تر اوسه د تحليلِ نفسي د نظريئې مخکښ منل کيږي- دهٔ انساني ذهن د يخي د هغي ټُکرې مانند ګاڼهٔ چې کمه برخه يې تر اوبو بَهر وي او زياته يې ډوبه- تر اوبو بَهر ښکاره حِصه يې دهٔ شعور ګڼلے ؤ او ډوبه حِصه يې د لاشعور په مثال اخسته- معنا دا چې شعور د ذهن ظاهري برخه ده او لاشعور يې باطني ، خو دغه باطني برخه يې کله کله د اوبو د حرکت سره ښکاره هم شي- يعني لاشعوري عناصر د بېلا بېلو پېښو يا وقوعاتو تر اثر لاندي شعوري حدونو ته هم را داخلېداى شي- د دهٔ د تحليلِ نفسي يا سايکو انلايسيس په اړه نظر داؤ چې انساني نفس يوازې د ذاتي جبرّيت نوم نهٔ دے بلکې بېلا بېلې برخي يې دي او علاج يې د شعوري او لاشعوري برخو په بشپړه پلټنه پوري اړه لري- لکه مخکې چې يې ذکر وشو ، سايکو انلايسيس هغه علم دے په کوم کې چې د يوهٔ کس دشخصيت بشپړه پلټنه کيږي او پر بنسټ يې بيا نتيجه ترې اخستله کيږي چې ددغه کس ذِهني کېفيات څهٔ دي ، مېلان يې په کومه خوادےاو علاج به يې څهٔ وي- د شخصيت مشاهده او مطالعه يوازې د صحت په اړه مُهمه نهٔ وي بلکې د ټولني د هر فرد نفسياتي مشاهده کېدلاى شي او پر بنسټ يې د ذهني مېلان اندازه هم لګېدلاى شي-

لکه چې په څرګندون نمبر۱۶ کې ښوول شوي دي اوس د نفس درې مُهمې فېکلټۍ شعور ، زېرشعور او لاشعور بلل کيږي-




ښرګندون نمبر ۱۶ د انساني نفس بېلا بېلي برخي

شعور د نفس هغه وړه برخه ده کومه چي د انسان په اراده کي دننهٔ ده او دے قُدرت ورباندي لري چي په خپله آزاده اراده کار ترې واخلي- دا تر ډېره حده هماغه شيز دے کوم چي له پېړيو راهسي د عقل په نامهٔ مسوا دے- د ټول انساني ذِهن لسمه حِصه يعني ۱۰ ٪ ددهٔ تر خپل ارادي کنټرول لاندي ده ، پاته ۹۰ ٪ حِصه يې لاشعور دے ، پَرته له يوې وړې غوندي حِصې چي زير شعور بلل کيږي او هغهٔ په مقدار تر۱ ٪ هم کم دے- زير شعور نهٔ خو په بشپړه توګه د انسان تر قدرت لاندي دے او نهٔ بلکل آزاد دے- که انسان کوښښ

وکړي نو يې پر ځينې ځايونو تر خپل ارادي کنټرول لاندي راوړای هم شي- لاشعور د نفس تر ټولو غټه او مُهِمه برخه ده چي نهٔ خو يې عام انسان ته ادراك شته او نهٔ کنټرول ورباندي لري، مګر هغه واړه کارونه چي د انسان په ژوندانهٔ کي د ارزښت وړ دي په همدغه حِصه پوري اړه لري-

نفسيات د روايت ترسايه لاندي يوه نوې ساينسي او علمي څېړنه ده چي د نولسمي پېړۍ د وروستۍ برخي راهيسي مخ په وړاندي روانه ده- دا يوې خوا ته په ذهن کي د شعور، زېر شعور او لاشعور درو واړو خپل منځي تړاو تر بحث لاندي راوړي او بلي خواته د نفس د هوډرو ګوښو پلټنه هم کوي- له پخوا څخه دا روايت راروان دے چي څهٔ کارونه په عقل کيږي او څهٔ په زړهٔ- دغه علامتي زړهٔ چي په شاعري کي ببخی ډېر ستايل شوے دے، په اصل کي د لاشعور يوه داسي بڼهٔ ده چي موږ يې په ادب او کلتور کي له پېړيو وينو- لاشعور هغه مخفي ذهني قوت دے چي په څهٔ خاص موډ کي پکار راوستل کيږي- څهٔ خاص خاص مُحرکات کله کله دغه ويدهٔ ذهني قوت را ويښوي او بيلا بېل کارونه ترې اخلي- اوږدهٔ اوږدهٔ خيالونه او خوارهٔ خوارهٔ خوبونه د همدغه لاشعور په وجه ممکن دي- هيلي، خواهِشونه، اندېښني او وسوسې ټول د لاشعور پېداوار دي- شاعري، سرمستي، وجدان، عشق او جنون ټول دلاشعور په برکت ممکن دي کني ژوند به يو بې خونده او خالي خالي غوندي شے وای چي په تېرېدو به هم نهٔ تېرېدای- لاشعور د بهاند رود په شان روان

وي قرار نه لري- کله ډېر څۀ وېهوي له ځان سره يې يوسي او کله پر غاړۀ غاړۀ څۀ نۀ څۀ را وَهم غورځوي- په شاعرانه انداز کي به داويَل بېځايه نۀ وي چي:

دا چي رود په غرغړو دے
داچي ځي تر غاړي غاړي
دا لښکر دے دخيالونو
دا منظر دے د لعلونو
دا چي هيڅ نۀ دے ، ډېر څۀ دے
کاروان د تخيّل دے
سرچينه ده د سندرو
دا زما دفکر تال دے
نۀ مکان نۀ لامکان دے
دا څپې نه دي جذبې دي
ولولې دي ولولې دي
غورزنګونه د ځوانۍ دي
دوفا ډکي پيالې دي
دا طاقت دے د موجونو
دا قوت دے د قامونو

دا د تېر تاريخ هينداره

ريشتا ګو دے ، ريشتياګودے

دا ګواه دے  د بې شمېره غورځنګونو

دا زما د خيال مارغه چي

اوس پرې ګرځي دلي دوري

دا جنون دے که وجدان دے

لاشعور دے ، بېکران دے

تر فرائيډ لمخه د قام ، ټولني ، مذهب ، اخلاق او جمالياتو په حقله د پوهانو فکر يوازي پر عِلمي مفروضو ولاړ ؤ ، څۀ ساينسي بنسټ يې نۀ درلود- دفرائيډ دلاشعور نظريه يوې خواته د نفسياتي تنقيد اساس جوړه شوه بلي خواته يې د عقل او دانش په اړه نوي نوي سوالونه را وړاندي کړل- د دغو سوالونو د ځوابونو په تلاش ژونګ او اېډلر را ووتل- دوی په نفسياتي تحقيق کي نور هم مخته ولاړل او په نفسياتو يې د انساني ذهن او تخليقي محرکاتو بشپړ تفهيم وکړ- اوس نفسيات پر ساينسي بنسټ د انساني ذهن د بېلا بېلو کېفياتو مطالعه کوي- دا يوې خواته د نفس ، بصيرت او ضمير پلټنه کوي او بلي خوا ته د انسان د شخصيّت ترکيبي اجزا هم تر بحث لاندي راوړي- چونکي د هر فرد شخصيت له بله بېخي بېل دے او هر څوك خپل ځانګړ ے نفسياتي ساخت لري  ځکه  نو د شخصيت

اِمتيازي خاصيَّتونو پلټل او په علمي توګه نتيجې ترې اخز کول اوس يو مهم ساينس شو- د نفسياتو د علمي اهميت سره سره نفس پوهنه يعني سايکياټري هم د مېډيکل ساينس يوه مهِمه شعبه شوه- چې د انسان د نفسياتي ناروغيو او علاج تجويزولو زمه واري يې پر اوږو ده- نفس پوهان چې کله د شخصيت داخلي مخفي رازونه پلټل غواړي نو څۀ خاص طريقه ورلره خپله کړي، دغه طريقه په ساينسي توګه سايکو انلايسيس بلل کيږي[5]-

انسان همېش د فِکشن، فلسفې او ساينس درو واړو مهم ترين موضوع پاته شوے دے، په زياته بيا ددۀ ذهني کېفيت او تخليقي صلاحيت- تر افلاطون ډېر لمخه په ابتدايي شاعري او نکلونو کي هم د انسان د احساساتو او جذباتو د اظهار بې شمېره مثالونه شته- بيا په فلسفه کي د افلاطون له زمانې څخه د ځان پېژندني او عرفانِ الهي سره سره پر تخليق او تخيّل اوږدۀ بحثونه کيږي روان دي- خو نوے نفسياتي بحث په دې وجه له هغو بېل دے چي په نفسياتو کي د استدلال ساينسي بنسټ د ذهني ساخت بهتر وضاحت کوي او پر دې ټينګار کوي چي د تخيّل سرچينه لاشعور دے او تخليق د لاشعور د اظهار يا تسکين يو انداز- د فرائيډ د لاشعور[6] تر نظريئې وروسته چي کله د ژونګ[7] د اجتماعي لاشعور نظريه مخته راغله نو د هغو ډېرو اړو سوالونو ځوابونه هم په وشول چي د لاشعور دنظريئې سره سم راپاڅېدلي وو- د انسان په تخليقي عمل کي د ډېرو نفسياتي محرکاتو لاس وي- د دغو مُحرکاتو پلټنه، او

د تخليقاتو سره يې د تړاو بحث د جديد نفسياتي تنقيد روح ګڼل کيږي- پر نفسي اساس د تخليق کوونکي د شخصيت جايزه او بيا يې په رڼا کي د بېلا بېلو تخليقاتو تجزياتي مطالعه جديد نفسياتي تنقيد ګڼل کيږي- ژونګ د اجتماعي لاشعور سره سره د لاشعوري اساسي سانچو تصور هم ورکړ چي په جديد ادب کي د علامت او ايمېج وضاحت په آساني په کيږي- د تخليقي ذهن د نفسي ساخت اندازه هم د لاشعوري اساسي سانچو پر بنسټ کېداى شي-

په نفسياتو کي د فرائيډ زور د ژوندانۀ پر ابتدايي ناآسوده جنسي جذباتو ۇ او همدغه يې د هر تخليق محرك ګڼلے ۇ- که څۀ هم د دۀ د نفسي تحليل نظريه د انساني ذهن د ژوري مطالعې يو د قدر وړ کوښښ ۇ خو ځينو پوهانو ورته د شك په نظر ځکه کتل چي دوى نفسي تحليل د جمالياتو د اصولونو خلاف ګڼلے ۇ ، حالانکي د نفسي تحليل په نظريه کي د جمالياتو معروضي اهميت شته دے- دفرائيډ د نفسي تحليل نظريه د دې حقيقت تصديق کوي چي د تخليق کوونکو جمالياتي صلاحيّتونه د لاشعور له شکمه پېدا کيږي- ژونګ د انسان په سائيکي يا نفسياتو کي وپخوانيو روايتونو ، نسلي ارزښتونو ، مذهبي عقايدو او اساطيري قدرونو ته اوّليت ورکاۇ او د جنس رول يې ډېر مُهم نۀ ګاڼۀ- د دۀ نظر داۇ چي د انسان لاشعور يوازي د دۀ د شخصيت مظهر نۀ دے بلکي د دۀ د نسل د لرغوني تاريخ نمايندګي هم کوي ، ځکه نو په صحي معنا اجتماعي لاشعور ورته ويَل مناسب دے- د لاشعور پر ساخت د فرائيډ او ژونګ تر منځ نور څۀ خاص

عمل کي د ډېرو نفسياتي محرکاتو لاس وي- د دغو مُحرکاتو پلټنه ، او اختلاف نهٔ ؤ ، پَرته له دې چي د ژونګ په نظر يوازې ابتدايي جنسي ناآسودګي د لاشعور بشپړ وضاحت نهٔ شي کولای- ددهٔ دلاشعور تصور تر فرائيډ ډېر پراخ ؤ- دے په خوبونو کي د بشارت قايل ؤ ، د انساني روح پر عظمت يې بشپړ يقين لارهٔ ، او په خپل فکري نظام کي يې و قلبي وارداتونو ته هم ځای ورکاؤ- د دهٔ په نظر لاشعور هم پر دوو برخو وېشلے دے ، يوه برخه يې ذاتي لاشعور دهٔ او بله يې اجتماعي لاشعور- ذاتي لاشعور يې تر ډېره حده هماغه دے کوم چي د فرائيډ نظريه وه ، خو د دهٔ په نېز د ژوندانهٔ تراخهٔ يادونه او غميزي هم د ذاتي لاشعور مهِم تشکيلي عناصر دي- اجتماعي لاشعور لره يې ځانګړے منطق درلود- د دهٔ په نظر د انسان په ذهن کي د اجتماعي لاشعور په تشکيل کي له پېړيو څخهٔ راروان بې شمېره ارزښتونه برخه اخلي- د ټولني زياتره عام خلګ يو شانتي شعوري فېصلې کوي او موږ ورته عقلِ عامه يا کامن سِنس يا اجتماعي شعور وايو- همدغه شان د يوې سيمي ، يا يوهٔ نسل ، يا يوهٔ قام خاص خلګ يعني شاعران يا اديبان تر ډېره حده يو رنګه لاشعوري مېلانونه لري چي د اجتماعي لاشعور په معنا اخستل کيږي- اجتماعي لاشعور په بېلا بېلو قامونو کي جُدا جُدا وي ولي چي په تشکيل کي يې د اسلافو واړه ارزښتونه هم شامل وي- دا تر ذاتي لاشعور لاندي يو بل مطلق العنان لاشعور دے چي زموږ د نفسي تجرباتو او شعوري ولاشعوري کارکردګۍ څخه بالکل آزاد دے- دا نارسا او خود مختار لاشعور اجتماعي لاشعور

ګڼل کيږي چي د ذاتي لاشعور سره يې هيڅ يو تړاو هم نشته- دا هغه خاص لاشعور دے چي په تشکيل او نشونما کي يې اصل رول د وراثتي عناصرو د هغي لامتناهي سلسلې دے چي ازانګې يې په تخليقي سانچو کي بېلا بېل رنګونه ډکوي- اجتماعي لاشعور د هوا د څپو په شان هر وخت موجود او متحرك وي خو ښکاري نۀ- فرد لره کله په غېر معمولي حالاتو کي احساس ورکولای شي- د اجتماعي لاشعور د وراثتي عناصرو بهتره مشاهده په مريض کې تر آپرېشن وروسته د نشې په حال کي په آساني کېدای شي- هغه وخت چي يو کس د کوم څۀ اظهار کوي له هغه څخه د دۀ د اجتماعي لاشعور د ساخت اندازه کيږي- کله کله په خوب کي او کله کله د شرابو په نشه کي هم د فرد ددغه غېر متمدن اجتماعي لاشعور نندازه کېدای شي-

په تخليقي نفسياتو کي تر فرائيډ او ژونګ وروسته د اېډلر نوم هېرَول نا انصافي ګڼم ولي چي دۀ دادب او تنقيد په اړه نفسياتي مباحثو ته دوام ورکړے ؤ- په جرمني کي ددۀ د ګېسټالټ[5] نفسياتو پر ادب او تنقيدي مباحثو مهم اثرات شته- ګېسټالټ Gestalt د جرمن ژبي لفظ دے چي د هېئت په معنا اخست کيږي- په ګېسټالټ نفسياتو کي تر ټولو زيات زور پر ياداښت ، ادراك او محرکاتو ورکړل شوےدے- لکه چي موږ پر دې ټينګار کوو چي فلسفه د فکري لحاظه ' کُل ' ګڼل کيږي او يا بيا د کل سره د'جُز' د تعلق وضاحت کوي ، همدغه شان د کېرول په قول " کُل د خپلو جُزونو تر مجموعې زيات دے " مطلب دا چي هره تجربه په خپل انفرادي شکل کي يو

وحدت دے او تاثر یې هم د خپلو اجزا څخه بېل دے- موږ یې د بېلا بېلو اجزا شعوري تجزیه خو کولای شو مګر ارزښت یې د جوړښت د اجزا څخه بلکل بې نیازه دے- د بېلګې په توګه د یوۀ نظم اصل تاثر په هغۀ کې د موجودو شعرونو د مجموعي تاثر څخه بېل دے- دغه نظم ځان لره خپل یو انفرادیت لري او د یوۀ تصویر په شان د خپلو بېلا بېلو رنګونو څخه ډېر اوچت مقام لري-

په حیاتیاتي توګه هم ماشوم د مور او پلار څخه په وراثت کې ډېر خاصیتونه اخلي- د دۀ مور او پلار دغه خاصیتونه له انیا او نیکه څخه اخستي وي- دارنګه ماشوم په حیاتیاتي توګه د خپل نسل یو نماینده وي- په زړګونو کلونه مخکې چې کوم اسلاف تېر شوي وي د هغوی حیاتیاتي وراثتي خام مال یا جینز لاهم د ماشوم په وینه ، زړۀ او ذهن کې موجود وي- ځکه خو ډي اېن اے ټېسټ د کس د شناخت په حواله یوه مُهمه معاینه ګڼل کېږي چې د فرد د خاندان پته په لَګول کېدای شي او د رشتو پلټنه یې هم په کېږي- چونکې د اجتماعي لاشعور په تشکیل کې د پېړیو تجرباتي مواد موجود وي ځکه نو دا محض ګمان نۀ دے چې د پېړیو څخۀ د اسلافو خصلتونه روحاني ، ذهني او نفسیاتي ارتقایي مدارج په نسلونو کې تر ابده چلیږي- لکه چې په ساینسي توګه جېنېټك نقشې اوس د وراثتي ناروغیو د علاج په کار راځي همدغه شان د لاشعور بنیادي سانچې دي چې له ازله وجود لري او هر یو کس د خپلو تجربو په رڼا کې خپل رنګونه پکښې ډکوي لګیا وي-

لاشعور يو خاص حركي قوت لري چي همه وخت له نوې سره د خپل تشکيل په عمل کي بوخت وي- د ذهن فالتو خليې پېوسته په همدغه کار بوختي وي- لاشعور چونکي د تخليقي صلاحتونو حامل هم دے ځکه چي کله يو محرك يا احساس دے چېلنج کړي نو بيا دغه حركي قوت په تخليقي عمل کي بوخت شي- د ذاتي لاشعور يو خاص خاصيت دا هم دے چي د بېکارۍ په حال کي ډېر کار کوي- کله چي يو کس بېکاره ناست وي يا اوزګار شي نو په همدغه وخت کي د لاشعور حركي قوت رامخته شي او په تخيليقي کار يې بوخت کړي-

لنډه دا چي شعور او لاشعور په نفسياتي توګه د انساني ذهن دوه مهم اجزا دي- نفس پر شعور ، زېرشعور او لاشعور مشتمل دے- شعور او لاشعور بيا خپلي خپلي ذاتي او اجتماعي برخي لري- د تخليقي ذهن په فکري نظام کي د شعور او لاشعور سره سره د لاشعوري اساسي سانچو هم ډېر اهميت دے- ولي چي په جديد ادب کي د علامت او ايمېج وضاحت په همدغو لاشعوري سانچو ممکن دے- د تخليقي ذهن د نفسي ساخت پلټنه ، پر نفسي اساس د تخليق کوونکي د شخصيت جايزه او بيا يې په رڼا کي د بېلا بېلو تخليقاتو تجزياتي مطالعه د جديد نفسياتي تنقيد بنسټ دے- لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، شعور د ژوندانۀ په تورو تيارو کي دمنطق په خپل قنديل لاره وړي خو لاشعور د احساس په رڼا په همدغو تيارو کي خپل سفر ته دوام ورکوي- هر کس څۀ کارونه په شعوري کوښښ

کوي خو زياتره د متضادو لاشعوري احساساتو سره مخامخ وي- دځينو خلګو په فکر کښي شعوري عنصر زيات وي خو ځينې داسي هم وي چي دسرمستۍ څو لحظې د ژوندانهٔ تر ټول شعوري استدلال خوندوري او مغزني ګڼي- زهٔ پخپله د شعوري استدلال قدر کوم خو منطق د انساني فکر پر اسمان د کروړونو ځلاندو سترو څخه فقط يو ستورے بولم ولي چي عقل پخپله هم هميشه غيرمتعين پاته شوے دے- پر دې خبره ټينګار هم کوم چي زموږ په زمانه کي منطق يوازي د استدلال په دسمال کي د پېچلو خواهيشونو نوم پاته دے- د انسانانو په حبث موږ په دې حقيقت اوس ښهٔ خبر يو چي بېلا بېل لاشعوري احساسات د فکر پر اسمان بې شمېره ستوري دي چي تخليقي سلسله يې همه وخت روانه دوانه وي- د تخليق د اظهار تر ټولو مهمه ذريعه بيا مورنۍ ژبــه ده ولي چي د تخليق تړاو د اجتماعي لاشعور سره دے ، او د قامونو د پرمختګ اصل قوت هم د ژبي ځواک دے-

## اخځليك

1- اينډرسن جان ، کاګنيټيو سايکالُوژي ، (Cognitive Psychology)څلورم

ايډيشن ، فري مېن ۱۹۹۵

2- ويلهلم مېکس ونډټ ، 'د فزيالوجيکل سايکالوژي اصولونهٔ '

The Principles of Physiological Psychology

دوه ټوکه ۱۸۳ - ۱۸۴ انګرېزي ژباړه ۱۹۰۴

3- جان لاك ، An Essay Concerning Human Understanding

’د انسان پر دانش یو ه مقاله ‘ ، آکسفورډ یونیورسټي پریس ، لندن

4- هال کالوین ، (A Primer of Freudian Psycology) یعني

’ دفرائیډ ابتدایي نفسیات‘ ورلډ ۱۹۵۴ او ډیوټن ، ۱۹۹۹

5- والمېن بېنجیمن ، د سایکیاټري ، سایکالوژي او نفسي تحلیل

اینسایکلوپیډیا ۱۹۹۶

The Encyclopedia of Psychiatry, Psychology, and Psychoanalysis. Holt, 1996

6- موکن هاپټ ، Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious

’سیګمنډ فرایډ: د لاشعور پلټونکے‘ آکسفورډ یونیورسټی پرېس ۱۹۹۹

7 - ژونګ کارل ګستاؤ ، ’ Man and his Symbols یعني انسان او د دۀ علامات‘

ډبل ډې ، ۱۹۶۹ ، دوهم ا شا عت Laureleaf, 1997

* * *

# د ژبې ځواك

د ژبې ځواك د انسان هغه مخفي ذهني صلاحيّت دے چې دے د خپل داخلي ذهني قوت بشپړ اظهار په کولای شي- ورسره ورسره دا د زدکړې او پوهې هغه بېل قدرتي صلاحيت هم دے چې مرکز يې له ازله په زياترو خلګو کې د انساني دماغ په کينې اړخ کې شتون لري ، خو خال خال داسې هم وي چې دا په ښي اړخ کې وي- لکه زياتره خلګ چې په ښي لاس کار کوي او کله کله داسې هم وي چې څوك چپه لاسے هم پکښې راشي ، همدغه راز د چا د ګای کولو مرکز د دماغ په چپ اړخ کې وي خو کله د دماغ په ښي اړخ کښې هم ممکن وي- په هرحال دغه مرکز هر چيري چې وي ، پر بېلا بېلو برخو وېشلے دے چې پکښې محسوساتي برخه ، پلټونکې برخه ، فېصله کوونکې برخه او عملي کوونکې برخه ګډون لري- د دغو برخو يې بېلا بېل ساينسي نومونه دي او بېلا بېلې ناروغۍ يې د مېډيکل په کتابونو کې په تفصيل سره راغلي دي- خو دلته يې تش د څو مهمو برخو ذکر کول ضروري ګڼم ولې چې نور بحث يې ټېکنيکي دے او د موضوع سره سمون نۀ لري-

په حياتياتي توګه د ګای کولو دپاره په انساني ذهن کې دوې برخې ډېرې مهمې دي- يوه لکه بروکا اېرياBroca's Area چې د نامتو فرانسوي نيورولوجيسټ پال بروکا Paul Broca په نامه يادېږي ، چاچې يې د کال۱۸۲۴ او ۱۸۸۰ تر منځ لومړے ځل پته لګولې وه- د ژبنې مرکز دغه برخه د انساني دماغ په چپه اړخ کې د مخ په خوا شتون لري او په ګای کولو کې دا د ږغ پاڼو ، تالو ، حلق ، ژبې ، شونډو او ژامو حرکت کنټرولوي- دوهمه مهمه برخه يې ورنيکې اېريا Wernicke's Area ده چې د جرمن نيورولوجيسټ کارل ورنيکې Carl Wernicke په نامه يادېږي او په کال ۱۸۷۴ کې نوموړې معلومه کړې وه چې دا د اورېدلو او ليدلو په مرسته د ګای په ترکيب کې مهم رول لوبوي- د ژبنې مرکز دغه برخه د دماغ په کېڼې اړخ کې شاته پرته ده ، چيرې چې د اورېدلو او ليدلو مرکزونه هم موجود دي- د ژبنې مرکز دغې دواړې برخې يوه له بلې سره د اعصابي تنکو په يوه بنډل تړلې دي چې آرکوئېټ فېسيکولس Arcuate Fasciculus ورته ويل کيږي- په حقيقت کې دلته هم د فکري نظام په شان د کوګنيشن اصولونه په کار راځي- دلته هم تر اورېدلو او ليدلو وروسته غوړونه او سترګې بېلا بېل پېغامونه تر محسوساتي يادانښت يعنې ورنيکې اېريا پورې رسوي چرې چې په ذهن کښې داخلې احساس راپاڅيږي ، د انسان توجه را اړوي او پېغامونه ترپلټونکې يادانښت پورې رسوي- د يادانښت دغه دوهمه برخه ډېره مهمه ده او د درېيمې برخې يعنې پاخهٔ يادانښت په مرسته محسوس کړې معلومات پلټې او

په نتيجه يې رسوي- د اسانتيا د پاره په څرګندون نمبر۱۷ کي د انساني دماغ په کيڼي اړخ کي ، ددغه مرکز تشه يوه خاکه ستاسو په وړاندي ږدم چي دخبري سپيناوے په وشي-




څرګندون نمبر ۱۷ د انساني ذهن ژبنے مرکز

د دغو معلوماتو يوه مهمه حصه تر پلټني وروسته ' کوډ ' شي او پاخهٔ يادابښت ته منتقله شي چي د سبا د پاره د تجربې په حېث په کار راوسته کيږي- خو بله برخه يې د بروکا اېريا تر کنټرول لاندي عملي

کيږي او ګاى په کيږي- چونکي دتخليقي تندي پېل له ذهن څخه کيږي او په تخليقي عمل کي فکر ، احساس او يادابښت سره ملۀ وي ځکه يې نو بشپړ اظهار لره د ژبې ځواك ضروري دے- پر دغه تېکنيکي اړخ يې د نور بحث ضرورت ځکه نشته چي مخکي يې هم وضاحت شوے دے-

مطلب دا چي د انساني فکر په شان د ژبې ځواك هم خپل يو بېل پېچلے نظام لري چي د ژبني مرکز سره سره حلق ، ږغ پاڼي ، تالو ، ژبه ، شونډان او يو شمېر وړې وړې اعصابي تنکي پکښې برخه اخلي- دغه اعصابي تنکي په اصل کي ژبنے مرکز او نور بېلا بېل اعضا په يوۀ نظام کي سره تړي او د ذهن د داخلي قوت بشپړ اظهار ته يې لېوال کاندي- دا د يوۀ داسي بشپړ ژبني نظام نوم دے چي بالا د يوۀ فکري نظام کواګنيشن سره تړلے دے- يعني تر ليدلو ، کتلو ، لوستلو او اورېدلو وروسته احساس ، توجه ، خيال ، پوهه ، يادابښت ، ګمان ، وسواس ، قوّتِ فېصله ، حلق ، ږغ پاڼي ، تالو او ژبه ټول پکښې برخه اخلي-

لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، د انسان د ذهن د داخلي قوت بشپړ اظهار په همدغه ژبني نظام پوري اړه لري- که څۀ هم انسان د اظهار بېلا بېلي نوري طريقې لري لکه سترګي او لاسونه خو دا هيڅکله د ژبې په ګچه نه شي کېداى - سترګي ، غوږونه او پوزه د انساني ذهن درې داسي دروازې دي چي دننه راخلاصيږي او د بهر معلومات ذهن ته راوړي ، خو ژبه له ذهن څخه معلومات د باندي

لېږي- دانسان داخلي قوت د دۀ په ذهن کي وده کوي خو په خارجي دنيا کي يې د اظهار مُهمه ذريعه ژبه ده- د دۀ فکر، احساس او تجربه تر هغه وخته يوازي د دۀ په خپل ذِهن کي وي تر کومه چي يې دے اظهار ونۀ کړي- خارجي عوامل هغه احساس را پاڅوي چي د ګس په داخل کي د ډېر څۀ کولو صلاحيت وده په کوي- احساس، فکر او تجربه ټول د اظهار ذريعه غواړي کنې د علم په رڼا هم د حقيقت تلاش ممکن نۀ دے- او د اظهار تر ټولو اوچته ذريعه ژبه ده- په عمومي توګه، ژبه هغه ذريعه ده په کومه چي د يوۀ خاص نوعي ژوندي څيزونه يو له بله سره تړاؤ ساتي- که څۀ هم ژبه د تړاؤ ساتلو يوازينۍ طريقه نۀ ده خو تر ټولو نورو ذريعو مُهمه ضرور ده- ورسره ورسره د سترګو په کتلو او د لاسونو په ښورولو يو له بله سره تړاؤ ساتل کېدای شي چي مثال يې د ګونګ او کوڼ تر منځ ليدل کېدای شي- په څو بُنيادي آوازونو هم مارغان او ځناوران يو له بله سره تړاؤ ساتي او د خپلو بېلا بېلو موخو اظهار په کوي[1]- د ژبي اوچت مقام يوازي يو له بله سره د تړاؤ ساتلو د ذريعې په توګه نۀ، بلکي د ليك لوست، فن او مېکانکي استعمال په وجه دے- ادبي تخليق چي د انساني ذهن د ستر داخلي قوت يو مظهر دے، د همدغي ژبي په برکت ممکن دے- ځکه نو د ژبي ځواك په ډېرو بېلا بېلو عواملو پوري اړه لري-

داسي برېښي چي د مارغانو او ځناورو په شان په اِبتدا کي د انسانانو ژبه هم يوه وه- ولي چي په اوّل سر کي د ځمکي پر مخ

خلګ لږ وو ، ژوند يې ساده او ضرورتونه يې هم ښخي کم وو ځکه نو ښايي چي د لږو لفظونو په يوه ساده غوندي ژبه يې کار کېدای شوای- دعالمي ژبپوهني په اصطلاح دغه يوازينۍ اوّلنۍ ژبه چي دآدم عليه السلام څخه پېل شوې وه او بيا يې تر ډېره وخته پوري دوام درلود "لينګووا آدميکا" بلله شوې ده[2]- دلته دا سوال ډېر مهم دے چي آيا لينګووا آدميکا د نوح عليه السلام د وخت تر لوی طوفان لمخه د خلګو ژبه وه او که يې تر هغۀ وروسته هم دوام درلود ؟ د دې سوال ځواب څرګند دے چي نۀ د نوح عليه السلام د وخت تر لوی طوفان لمخه حالات چا ته معلوم دي او نۀ تر هغه وروسته ژبني معلومات دچاسره شته- خو يوازينۍ اوّلنۍ انساني ژبه هر څۀ چي وه اوس د نوي اکاديميك ژبپوهني په رڼا کي همدغه "لينګووا آدميکا" بلله کيږي-

ورو ورو پر ځمکه خلګ ډېرېدل ، مشاهده يې پراخېده او ضرورتونه يې هم زياتېدل ځکه يې و نوو نوو لفظونو ته اړتيا لرله[3]- دا راز د بېلا بېلو شيزونو د پاره نوي نوي نومونه زوکېدل او دلفظونو په ذخېره کي روڼ په روڼ اضافه کېده- انسان چي به هر نوے شے ليد هغه ته به يې بېل نوم ورکاوۀ او هر نوي کار ته چي به يې مخه شوه نو په نوي انداز به يې څرګنداوۀ- د شلمي پېړۍ د نامتو فلاسفر ويټجن سټين په قول[4]:

"Naming is something like attaching a lable to a thing"

يعني نوم پرې ايښودل داسي دے لکه چي پر يوۀ شيز ليبل لګول-

د وخت په تېرېدو او د انساني نسل د زياتوالي سره سره ژبه هم پراخېده ، لفظونه زياتېدل ، نوي نوي طرزونه او بېلا بېل اصطلاحات منځ ته راتلل ، تر دې حده چي ورو ورو په زرګونو ژبي ترې را و زوکېدې-

د خدای د قدرت او اعلیٰ تخليق تر ټولو اوچت مثال د څيزونو تر منځ د توپير لامتناهي سلسله ده- هر کس په رنګ ، آواز ، شکل ، صورت ، فکر ، فهم او د ګفتګو په انداز له بل کس نه بېخي بېل دے- تر دې حده چي د يوۀ انسان د ګوتو نښان په دې نړۍ کي د هيڅ يو بل انسان سره مشابهت نۀ لري ، ځکه خو د ګوتي نښان په اوس وخت کي هم د هغۀ د پېژندني يوازينۍ د اعتماد وړ طريقه ده چي پر عالمي سطح د پاسپورټ لازمي برخه تسليم کيږي- د انسانانو د سترګو ګسي او د دماغ ساخت کله هم يو رنګه نۀ وي ، ځکه اوس د سترګو د ګسو عکسونۀ هم د ګوتو د نښانونو په شان د پېژندني د يوې بلي طريقې په توګه استعماليږي- د خلګو په ذهنونو کي د فکر کولو انداز هم يو له بله بېل وي- چونکي خدای انسان پر خپل فطرت پيدا کړے دے ځکه نو دے هم هر وخت او په هره توګه د څيزونو تر منځ د توپير په هلو ځلو وي- دے د ښۀ او بد انتخاب د همدغه فطري مېلان په برکت کولای شي- د ځان تشخص لره هم د څۀ داسي نوي انداز په هلو ځلو وي چي دے له نورو خلګو څخه ممتاز په ښکاره شي- ښايي چي د څيزونو تر منځ د توپير کولو انساني جبِلت د نوو نوو ژبو ، بېلا بېلو تحريرونو او رنګارنګ

تخليقونو اصل سبب وي- ځکه نو دا ويل غلط نۀ دي چي په ژبه کي يو داسي قوت شته چي د جادو غوندي تاثير لري ، کله يې د لفظونو ښايست د فصاحت او بلاغت تر حده رسيږي او کله يې بيا خاص تر تيب او نوښت د ماورائيّت او معيار تر بلنديّو اوچت شي-

په انساني تاريخ کي نسلي او ژبَنۍ ډلبندۍ په اصل کي د توپير کولو د همدغه فطري مېلان منطقي نتيجه ښکاري ، چي د زمانې په اوږدو کي د بېلا بېلو انساني نسلونو او رنګارنګ ژبو موجب دے[3]- د هري سيمي خلک خپلو کاڼو ، بُوټو ، ګلونو او رودونو لره خپل خپل نومونه خوښوي ، خپلي نغمې په خپل خپل انداز په خپلو فضاوو کي خپروي او خپل خپل سازونه خېږي- دغه انداز يې راتلونکو نسلونو ته د روايت په توګه ورپاته شي او هغوی يې هم خپل کړي- ورو ورو په دغو روايتونو څۀ نوي څيزونه ګډ کړي او بيا يې وراتلونکو نسلونو ته ور پرېږدي- دا سلسله تر پيړيو روانه دوانه وي او د زمانې په اوږدو کي بدلون ورپکښې راځي لګيا وي- بس همدغه روايت دے چي د ژبي د جوړښت ، ارزښت او بدلون اصل محرك دے کنې بل هيڅ منطق يې نشته- 'مينه' ته په پښتو ژبه مينه ويل تر روايت پورته نور هيڅ دليل هم نۀ لري ولي چي د همدغه څيز اظهار په دَري ژبه کي د 'محبت' او په انګرېزي کي د' لَو' په لفظ په آساني کېدای شي-

که چيري د يوې سيمي د خلګو ژبه يوه هم وي خو په دغه سيمه کي د هر ځای د خلګو خپله خپله لهجه وي چي دوی د بل

ځای د خلګو څخه بېل په ښکاري- د بېلګې په توګه په پښتنو کي د يوسفزو لهجه د کندهارۍ لهجې څخه بېله ده او بيا په کندهارۍ لهجه کي هم د پښين د خلګو لهجه د ږوب د سيمي د اوسېدونکو څخه بېله ده- د دغه توپير يوه وجه داهم ده چي پخوا تګ راتګ دومره آسانه نۀ ؤ لکه چي اوس دے ، ځکه نو دخلګو تر منځ د رابطو کمےؤ او کلتوري اشتراك يې هم بېخي کم ؤ- داسي برېښي چي د وخت په بهاؤ کي به د هري سيمي خلګو په خپل خپل بېل انداز د څيزونو نومونه ايښوول او د ژبي تعمير به په کېد- ورو ورو به د هغي سيمي ژبه له بلي سيمي څخه په ډېر څۀ بېله شوه خو څۀ نۀ څۀ لفظونه به يې هماغه وو کوم چي به يې په ريښو کي د خوېندو ژبو سره ګډ پاته شوي وو- د بېلګې په توګه ، کۀ څۀ هم پښتو يوه بېله ژبه ده خو ډېر لفظونه يې دري ، بلوڅي او فارسي ته ورته دي- په ژبه کي هر کله څۀ نۀ څۀ بدلون راځي لګيا وي- دا يو خودرو عمل دے لکه بهاندي اوبه ، چي په کومه خوا لار ورته سمه وي هغې خواته ځي- ژبه د چا په خوښه يا نا خوښه مخته نۀ ځي بلکي د ژوند په روان عمل کي ورو ورو بدلون پکښې راځي- هره ژبه چي تر نورو ژبو لاندي پرته وي هغه به زېر کيږي- کومي ژبي چي د ژوند په روان عمل کي په شَوه کي پرَتې دي ، که همدغسي پاته شوې نو به ورو ورو تر لويو ژبو لاندي شي-

ژبه له لويه سره خلګو لره مُهمه پاته شوې ده ځکه نو دا استدلال غېر فطري نۀ دے چي د ژبي او نسل پر بنسټ د خلګو تر منځ څۀ نه څۀ توپير روا وګڼل شي- ژبه ، نسل ، کلتور او وطن اوس

هم پر هرچا ګران دي- خبره تشه دومره ده چي ريشتيا ګو يې اظهار کولای شي او منافقان ترې ډډه کوي- په خپله ژبه کي ښکلے کلام ، خوږه نغمه ، خوندورتحرير او نوے تخليق دهرچا خوښيږي او دهر دور په تاريخي حوالو ثابته ده چي د تېر مهال بېلا بېلو خلګو په همدغه وجه ژبي تحرير او تخليق ته اساطيري رنګ ورکاؤ- تر ابراهيمي مذهبونو مخکي خلګو ژبي ، تحرير او تخليق لره بېلا بېل خدای ګوتي ټاکلي وو چي يو مثال يې لا تر اوسه په هيندوئزم کي د سرسوتي دېوي په رنګ کي وجود لري- په درې واړو ابراهيمي مذهبونو کي هم د ژبي تحرير او تخليق اهميت څرګند دے- يهوديان دا عقيده لري چي د تحرير نعمت د حضرت يونس عليه السلام په ذريعه خدای تر دوی پوري را وَرساؤ- عيسايان وايي چي د بايبل په حواله تر هر څۀ مهم لفظ 'لوګاز'دے چي د کلام په معنا اخستل کيږي- موږ مسلمانان په قرآن شريف کي د اِقرا ، قلم او کتاب په اهميت ښۀ خبر يو- داسي برېښي چي د ژبي ، تحرير او تخليق رشته د اسمان سره د تړلو دليل دومره هم غېر معقول نۀ دے چي يکسر مسترد کړل شي- 'ژبه او ځواك' د اوسنۍ زمانې يوه بله فلسفه هم ده- عربي ژبه د اسلامي نړۍ د مذهبي ځواك مظهر ده او انګرېزي ژبه دعالمي سياسي ځواك ذريعه- خپله ژبه خو هر ماشوم ببله څۀ شعوري هلو ځلو زياتره له خپل ماحول څخه زده کوي ، خو پکښې تقرير ، تحرير او تخليق د قدرتي صلاحيّتونو سره سره ډېري شعوري هلي ځلي هم غواړي-

لرغوني تاريخي واقعات او زاړهٔ تحريرونه موږ د تېر مهال په حقله په ډېر څه خبروي- د پخوا زاړه عمارتونه ، لوښي ټُوري ، تحريرونه او نور ډېر څهٔ اوس په بېلا بېلو هېوادونو کي تر څېړني لاندي راغلي دي- دغه څيزونه په علمي توګه د زاړه مهال په اړه خورا غوره معلومات ښندي- ورسره ورسره په طبيعي سائنس کي هم تحقيق ډير مخ په وړاندي روان دے- اوس خو په جديده توګه دځمکيندني له امله پر زړو ډېرو دموجود کاربن څخه د تېر مهال په حقله ډېر معلومات تر لاسه کيږي- د هغه مهال تحريرونه د زړو تهذيبونو په باب ډېر غوره معلومات ورکوي- په ډېرو هېوادونو کي دژبپوهني په رڼا کي کار وباندي کيږي او د بېلا بېلو کلتورونو او تهذيبونو په حقله نتيجې ترې اخستې کيږي- لوی شمېر لرغوني تحريرونه اوس په آساني ويَل کېدای شي- د بېلګې په توګه د زړو مصري تحريرونو څخه دا معلوميږي چي د فرعونانو په وخت کي او تر هغوی هم لمخه خلګو ليك لوست څنګه کاوهٔ ؟ او د هغه وخت په حقله يې څهٔ څهٔ ليکلي دي ؟-

د نوي اکادېمك ژبپوهني له رويه په مجموعي توګه د ژبو اته( ۸) بېلا بېلي ډلي دي[1]:

۱- اريك يا آريايي

۲- دراوړي

۳- سامي

۴- مونټړا

۵- هندوچيني

۶- ملايا ژبه

۷- مانتو يا افريکي

۸- امريکي يا ريډ انډين ژبي

'اريك' يا آريايي د ژبو هغه ډله ده چي پخوا په آريانا کي ويَل کېده- دغه ژبه ورو ورو پر ډېرو نوو نوو ژبو تقسيم شوې ده- د افغانستان ، ايران او يورپ د ټولو ژبو مور اريك ژبه ده ځکه نود دغي ژبي لوښي ژبي ټولي سره خويندي دي او اوس د هيندواوروپايي آريايي ژبو په يوه ډله کي شاملي دي- چونکي د دې سيمي د زياترو ژبو تړاؤ د همدغي ژبنۍ ډلي سره دے ځکه به څۀ نۀ څۀ بحث مخته هم ورباندي وکړو- 'دراوړي' د ژبو هغه ګروپ دے په کوم کي چي د دې سيمي د براهوي ژبي سره سره د هِند تلګو، تامل او کنړي شاملي دي- 'سامي' د ژبو هغه ګروپ دے په کوم کي چي عربي ، عبراني ، عاشوري ، فنيقي ، او څو افريکي ژبي شاملي دي- 'مونټړا' د ژبو هغه ګروپ دے چي د هندوستان منډلي ، ګوټه، سنبهل ، سنتهال او راج محل ژبي شاملي دي- 'هِندوچيني' د ژبو هغه ګروپ دے چي پر برمي ، تبتي او سيامي ژبو مشتمل دے- د برمي ژبي ۲۶ ښاخونه دي ، د تيبتي سره همالوي او د دغه لړ نوري ۲۳ ژبي ياديږي او په

سيامي ژبني لړ کي ژبي شاملي دي- 'ملايا' د ژبو هغه گروپ دے کوم چي په ملايشيا کي ويل کيږي - په دغه گروپ کي هم د ملايي سره سره ډيري نوري بېلا بېلي ژبي شاملي دي- 'مانتو' د ژبو هغه گروپ دے په کوم کي چي د افريکا يو نيم سل ژبي شاملي دي- 'امريکي' د ژبو هغه گروپ دے په کوم کي چي د امريکا د اصل قبايلو ژبي شاملي دي[5]- دغو قبايلو ته بهرنيو مداخلت کونکو انگرېزانو رېډ انډين ويل ځکه اوس هم په دغه نامۀ مسوا دي- د دغو قبيلو ډيري وړې وړې ژبي دلوی شمېر تېرونو سره سره په خانه جنگي کي له منځه ولاړې-کومو قامونو چي خپلي ژبي دليک او لوست په ذريعه ژوندۍ وساتلې هماغو د نړۍ واک ترلاسه کړ او دترقۍ بېلا بېل منزلونه يې سر کړل-

د قامونو په شان د ژبو هم خپل بېل تاريخ دے ځکه نو د ژبي بحث د حياتياتي ، نفسياتي او سماجي اړخونو سره سره تاريخي اړخ هم لري- د دې سيمي د لوۍ شمېر ژبو زوړ تاريخ ښخي واضح دے- دا سيمه په پخواني تاريخ کي آ ريانا بلله شوې ده- د آريانا اوسېدونکي آريايان دي چي اسلاف يې له پښته د آسيا په زړه کي اوسېدل[6]- پنځه زره کالۀ مخکي د دوۍ گډه ژبه تاريخ پوهانو اريك يا آ ريايي بللې ده[7]- ورو ورو د آريايانو آبادي زياتېده او خلک يې د ښې ورشو په طلب دلي دوري کوچېدل- تر عيسیٰ عليه السلام مخکي لا د دوی نسلي او ژبني ډلبندۍ شوي وې او د ډېرو قبيلو په ژبو کي يې ښکاره توپير ليدل کېد- د بېلگې په توگه هغه وخت د نړۍ اولني

تاريخ ليکونکي هېرودوټس[8] دا سيمه د پکتويکا Paktuika په نامهٔ ياده کړې ده او پښتون يې پکتوېس Paktues بللے دے- ځينې تاريخ پوهان خو پر دې هم ټينګار کوي چي پښتنو په وېدي دور کي لا هم شتون درلود[9]- دليل يې دا ورکوي چي د دغه دور شواهد د هِند په مذهبي کتابونو کي شته- تردغه وروسته خو په اوېستايي دور کي د پښتو ژبي د شتون اقرار ډېرو عالمي ژبپوهانو هم کړے دے[10,11]- دافغانانو اټکل دا دے چي افغاني فرهنګ په وېدي دور کي زوکړے او په اوېستايي دور کي يې خاپوړې کړي دې[12]- آريانا له وېدي دور څخه د افغانستان زوړ نوم را رَوان دے- پښتانهٔ ، ايرانيان او ديورپ خلګ د آريايانو پايځوړ بلل کيږي- د هِند د اوچتو ذاتونو خلګ هم آريايان دي- محترم احمد علي کهزاد[9] په وېدي حواله پشتانهٔ د آريايي قبايلو د 'پکتايان' ښاخ څخه بللي دي چي د'پښتايان' يا پښتانهٔ معنا ترې اخسته کيږي- آريايان د زرتښتي مذهب زرتښتيزم پېروکاران وو چي د آريايي پېشوا زراتشترا په واسطه ؤ- زرا تشترا د بلخ اوسېدونکے ؤ چي تر اوسه لا هم د افغانستان په جغرافيائي حدونو کي دے- د هخامنشيانو په وخت کي هم د افغانانو خپل جدا حيثيّت ؤ ولي چي اسلاف يې دسکايانو[6,12]په نامه ياد شوي دي او د 'ساکستان' په نامهٔ يې وروسته بياخپل دولت هم ساتلے ؤ-

حقيقت دادے چي په لرغوني تاريخ کي د آريايانو ستر مقام هم د دوئ د ژبي له کبله دے- دوئ دليک اولوست په اهميت پوهه وو او د هغه وخت په حساب يې خپل يو بېل نظام ساتلے وو-

خپل کتاب يې درلود چي د 'اوېستا' په نامۀ بلل کېد او د آريانا ټولو اوسېدونکو لره يې د آئين حېثيت هم لارۀ- دا کتاب په کال ۱۰۰۰ مخزېږده کي موجود ؤ چي تر تورات پنځه سوه کالۀ وروسته دور دے- په دې سيمه کي بيا نور کتابونه هم خلکو لوستل په کومو کي چي 'ريګ وېدا' او' ژند' دوه مهم کتابونه شمېرل کيږي- برهمنو او ساسانيانو تر ډېره وخته پوري دغه دواړه د آريايانو د ديني کتابونو په توګه لوستل- په مذهبي کتاب ريګ وېدا کي پښتانۀ د پکتايانو په نامه ياد شوي دي- د دغه وخت په وېدي سرودونو کي د نورو بېلا بېلو آريايي ټبرونو ذکر هم شته[9] چي نومونه يې شيوايان ، پکتايان ، الېناسان ، بهالانيان ، ويشانيان ، انويان ، دريوهويان ، توروااسايان ، يادويان او پورويان رانقل شوي دي پښتانۀ هماغه پکتايان يا پښتايان دي چي د آريايانو په دغولسو قبيلو[2] کي ياد شوي دي خو د پښتو ژبي تحرير يا د پښتايانو د جلا ژبي تر دغه دوره پوري څۀ خاص ثبوت نشته- ددغه تاريخي پسِ منظر موخه همداده چي اصل څواک ژبه ده- تحرير او تخليق دکتابونو په شکل دقامونو دشتون ، واک او ارزښت پته ورکوي- که تخليق ، تحرير او کتاب مۀ واى نو به د تېر مهال په حقله هيڅ سند هم نۀ واى پاته-

لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، په بېلا بېلو تاريخي حوالو د آرياوو اوّلنۍ ژبه اريك يا آريايي ياده شوې ده چي ورو ورو د زمانې په اوږدو کي په نورو نوو نوو ژبو کي تقسيم شوې ده- د اريك څخه زوکړې ژبي اوس 'هندو اوروپايي آريايي' ژبي بلل کيږي- د نوي

اکاډېمك ژبپوهني مطابق دغه ژبنۍ ډله وروسته بيا په 'اوروپايي' او 'هندوآرياني' ژبو وېشل شوې ده- همدغه شان اوّلنۍ ژبنۍ ډله پر بېلا بېلو اوروپايي ښاخونو سره وېشل شوې ده او وروستۍ ژبنۍ ډله يعني هندوآرياني ژبنۍ لړ د زمانې په اوږدو کې پرهندي او آرياني ژبو وېشل شوې دې- په هندي ژبو کې يې سنسکرت ، هندي ، بنګالي ، سيندي ، پنجابي ملتاني او دا شان نوري ژبې شاملې دي او آرياني ژبه پر دوو نورو بېلو ډلو وېشله شوې ده- په لوېديځه ايراني ډله کې يې پارسي ، پارتي ، بلوڅي ، کُردي او زازا ژبې شاملې دي او په ختيځه افغاني ډله کې اوېستا او زړه پښتو دوې مهمې ژبې دي- مارګن سټرن د پښتو ډېر لفظونه د اوېستا ژبې سره پرتله کړي دي او دايې ثابته کړې ده چې اوېستا او پښتو خوېندې ژبې دي- د زړې او منځنۍ پښتو په اړه زيار صاحب[12] په خپل کتاب "پښتو او پښتانهٔ د ژبپوهني په رڼا کې" او روان فرهادي صاحب په خپلو يادداښتونو کې د مارګن سټرن[10] ګټوري څېړني تر بحث لاندي راوړې دي ، ځکه يې نور تفصيل ضروري نهٔ ګڼم- پښتانهٔ چونکې د غرېځې سيمې پاونده قبايل وو ، تعليم پکښې نهٔ ؤ او معاش يې مالداري وه ځکه يې نو په خپله ژبه څهٔ د ذکر وړ تحرير نهٔ دے پرې اېښے- خو د جارج مارګن سټرن او نورو څېړونکو[10, 12] په زيار د پښتو ژبې بېلا بېل پړاوونه هم ټاکل شوي دي-

په آريايي قامونو کې د يونانيانو نېك مرغي داوه چې دوی له لويه سره د غور او فکر پر لار روان شوي وو- تر عيسیٰ عليه السلام

شپږ سوه کالهٔ مخکي لا هم د دوی په ټولنه کي داسي ډېر وګړي وو چي استدلال او اعتدال يې د خپل نسل د بقا او پرمختګ د پاره لازمي ګڼل- د ژوندي قام په حېث يې د ليك لوست او غور و فکر لاره خپله کړې وه- د غوره ټولني بنسټ يې پر معقوليت او منطق اېښے ؤ- تهېلس ، هرکولېس يا هېراکليټس ، فېثاغورث ، سقراط ، افلاطون او ارسطو غوندي د لوړ قامت پوهان ورو ورو پکښې پېدا شول ، ځکه يې ژبي پرمختګ وکړ او دومره علمي کارونه پکښې وشول چي اوس لا هم د ټولي نړې دپاره د لويي اثاثې حېثيت لري- يونان يوازي په ښه ټُوره د هغه وخت ستر پاور نهٔ ؤ جوړ شوے بلکي د فکر په رڼا او د قلم په زور يې ټوله نړۍ د ځان کړې وه- سکندرِ اعظم له يونان څخه تر هندوستان پوري ټولي سيمي ورو ورو ونيولې- ورسره ورسره يې د هغه وخت پر ډېرو ژبو د يوناني ژبي اثرات پرېښوول- د نورو ژبو په شان يې پر پښتو هم څهٔ نهٔ څهٔ اثرات پاته شول ، ولي چي په پښتونخوا کي يې قيام هم اوږد ؤ- د پښتنو پر تاريخ د يونانيانو اثرات ځکه تر اوسه لا هم شته چي هغوی د افغانستان له لاري هند قبضه کول غوښت ، او پر باختر يې تر سکندر وروسته هم تر ډېره وخته حکومت کاؤ لګيا ؤ- پښتانهٔ چونکي يو شاته پاته پاونده قام ؤ ځکه يې په خپله ژبه کي کم تحقيق کړے دے- په يوناني ، سنسکرت ، جرمني ، روسي ، عربي ، انګرېزي او نورو ژبو کي چي کوم تحقيق ورباندي شوے دے د هغه له رويه دپښتو تړاو د ختيځي افغاني آرياني ډلي سره دے او دغه ژبنۍ ډله د هِندو آرياني لړ څخه ده چي بالا د هِندو اوروپايي آريايي لړسره پېوند ده-

د انساني نسل آغاز چونکي له یوۀ ځایه او د یوۀ اولني انسان څخه شوے دے ځکه نو دا استدلال چي 'له اوّله سره انساني ژبه هم یوه وه' صحي ښکاري- لکه چي قام په ګډ نسل ، وطن ، کلتور او ژبه پېژندل کيږي همدغه شان ژبه په نسل ، جغرافيه او کلتور پوري اړه لري- دکومو قامونو ريښې چي په یوه خاوره کي وي د هغوی کلتورونه سره ورته وي[13] او ژبي يې هم سره خوږندي ګڼل کيږي ، ولي چي په جوړښت کي يې ډېر څۀ سره مشترك وي- لکه چي د هري ټولني خپل کلتور وي همدغه رنګه د هري ژبي بېل کلتور وي او دا تر ډېره حده په ټولنيزو ارزښتونو پوري اړه لري- له پېړيو راروان تهذيبي ، تاريخي ، روحاني ، تخليقي او اقتصادي عوامل يې په تشکيل کي برخه لري-

پښتو ، فارسي ، هندي او اردو د جغرافيايي قرابت په وجه سره خوږندي ژبي دي او تهذيبي ، تاريخي ، روحاني ، تخليقي او اقتصادي عوامل يې تر ډېره حده سره ګډ دي- د عربي ژبي مذهبي اثرات پر دغو ژبو يو رنګه دي ځکه يې دغه قدرهم سره مشترك دے- په دغه وجه نو پر پښتو ادب د فارسي ، اردو ، هندي او عربي اثرات فطري دي- انګرېزي ژبه يوې خواته آريايي ريښې لري او بلي خوا ته عالمي تجارتي ، ساينسي ، ټېکنيکي او علمي ژبه هم ده ځکه يې پر پښتو ژبه اثرات غېر فطري نۀ دي- همدغه شان د يورپ ټولي ژبي ، يوه پر بله اثرات سره لري- ځکه نو دا وېره صحي نۀ ده چي پر پښتو د فارسي ، عربي يا اردو اثر د بَلا سايه ده- پخپله پر فارسي ژبه د عربي

بې شمېره اثرات دي او اردو خو د فارسي په غېږ کي خاپوړي کړي دي- حقيقت دادے چي د خوېندو ژبو اثرات غېر فطري نهٔ دي خو د ژبي ارزښت په اصل کي په علمي ، تخليقي او ساينسي کارونو پوري اړه لري او په دې کي له هري ژبي څخه استفاده ضروري ده-

تر اوسه چي کوم تاريخي شهادتونه[14] تر لاسه شوي دي له هغو نهٔ خو دا ثابته ده چي د اجتماعي انساني ژوند ابتدا آريايانو کړې وه او د دوی اوّلنۍ ټاټوبے آريانا ؤ[15]- کله چي دغو زړو خلګو د خپل خوراك ضرورت له کښت او کروندو څخه پُوره کړ او لږ غوندي اوزګار شول نو يې د ژبي د ترقۍ سره سره و ښېلا ښېلو فنونو ته هم پام شو- اوّل اوّل به يې ښايي چي نکلونه ، ناري ، ټپې او لنډۍ پېل کړي وي او په ژبه کي به يې غوره بدلون راوستے وي- بيا به يې ښايي چي داستانونه او سندري پېل کړي وي او ژبه به يې نوره هم په ښايسته کړې وي- په همدغه زمانه کي ښايي چي خلګو به له ختې څخه لوښي جوړول زده کړي وي او ورو ورو به يې مِس ، ګيلټ او وسپنه هم په خپل استعمال کي راوستلي وي- مِس خو انسان اوه زره کلونه مخکي په خپل استعمال کي راوستي وو خو وسپنه يې تقريبا درې زره کالهٔ مخکي ويلي کوله او د ضرورت شيزونه به يې ترې جوړول-

آ ريايانو هغه وخت ښخي ساده غوندي ژوند کاؤ او ژبه به يې هم ښايي چي ډېره ساده وه ولي چي ابتدايي ژوند ؤ ، ضرورتونه کم ؤ او په لږو لفظونو هم خلګ په آساني سره پوهـ کېدل- زياتره به يې په خپلو دنګو غرونو کي سمڅې کيندلې او پکښې به استوګن وو-

ځکه يې نو د ژبي لفظونه هم ښايي چي تر دغو غرونو ، سيندونو ، کاڼو ، بُوټو ، وښو ، ورشو ، پسو او رمو پوري محدوده وو- وروسته چي کهولونه ترې جوړشول ، خاندانونه شول او قبايلي ژوند پيل شو نو د ژبي الفاظ هم ورو ورو ورسره زياتېدل- د آرياناډغه اولني خلګ به په ابتدا کي دځان ژغورني په موخه سره نژدې کېدل او ګډ به سره اوسېدل- خو کله چي قبايلي ژوند پيل شو او قبيلې غټې شوې نو بيا ځله وېړکېدې او په بېلا بېلو سيمو کي آبادي شوې- که څۀ هم د پښتنو اسلاف پرخپله سيمه آريانا د موسم په مناسبت د خپلو مالونو سره دلي دوري کوچېدل[16]خو لوی شمېر آريايان داسي هم وو چي چا يورپ ته کوچ وکړ او څوك د هند په خوا وکوچېدل- هلته ښايي چي دغو قبيلو پر خپل خپل انداز نوره ترقي کوله او په ژبو کي يې هم دوخت په تېرېدو او د خپلي سيمي د حالاتو په مناسبت بدلون راتلے- تردې حده چي يو وخت داسي هم راغے چي يورپ او هِند ته کوچېدلو آريايانو د جغرافيايي ماحول په نتيجه کي نوي نوي ژبي اختيار کړې خو د دغو ژبو په ريښو کي اوس هم د خپلي زړې اريك ژبي اثرات شته- د ژبپوهني په رڼا کي دغه ټولي ژبي په يوۀ لړ پېيلي دي ، او دغه لړ هِندو اوروپايي آريايي ژبنے لړ دے- د دغه لړ ټولي ژبي سره خوېندي دي او ډېر لفظونه يې اوس هم سره يورنګه ښکاري- د بېلګے په توګه په څرګندون نمبر۱۸ کي د پښتو ژبي سره د دري فارسي ، سنسکرت ، يوناني او لاطيني ژبو لفظونه پرتله شوي دي-

دا شان بې شمېره لفظونه شته چي په دغو ژبو کي سره ورته دي او دپښتو ، دري ، سنسکرت ، يوناني او لاطيني ژبو د ګډ اساطير پته

| پښتو | دري/فارسي | سنسکرت | يوناني | لاطيني |
|---|---|---|---|---|
| پلار | پدر | پيتا | پاتر | پيتر |
| پښه | پا | پد | پاوس | پيس |
| مور | مادر | ماتا | ميتر | ماتر |
| شپږ | شش | شش | هيکس | سيکس |

خرګندون نمبر ۱۸ خوېندي ژبي

دا شان بې شمېره لفظونه شته چي په دغو ژبو کي سره ورته دي او د پښتو ، دري ، سنسکرت ، يوناني او لاطيني ژبو د ګډ اساطير پته ورکوي ځکه نو په دې کي هيڅ شك نۀ پاته کيږي چي دغي ژبي ټولي سره خوېندي دي- دلته دا حقيقت هم څرګند دے چي پښتو يوه ډېره زړه ژبه ده يعني د يوناني ، لاطيني ، سنسکرت او زړې فارسي غوندي لرغونيو ژبو خورده- په ساينسي توګه چونکي لرغونے ژبے پير

دا شان بې شمېره لفظونه شته چي په دغو ژبو کي سره ورته دي او د پښتو ، دري ، سنسکرت ، يوناني او لاطيني ژبو د ګډ اساطير پته

دا شان بې شمېره لفظونه شته چي په دغو ژبو کي سره ورته دي او د پښتو ، دري ، سنسکرت ، يوناني او لاطيني ژبو د ګډ اساطير پته له ۳۰۰۰ مخزېږدي ځخه تر ۵۰۰ مخزيږدي پوري دے ځکه نو د پښتو ژبي عمر هم خواؤشا ۵۰۰۰ کالهٔ ګڼل کيږي- دا بحث ځکه دا شان بې شمېره لفظونه شته چي په دغو ژبو کي سره ورته دي او دپښتو ، دري ، سنسکرت ، يوناني او لاطيني ژبو د ګډ اساطير پته ضروري دے چي ټولنيز ارزښتونه ، قدرونه او علامتونه د تهذيب ، تاريخ ، جغرافيه او کلتور سره پيوند دي او همدغه خيزونه دي چي تېر مهال د اوسني دور سره تړي او نسلونه د بهتر سبا په هيله روان دوان کاندي- اصل ځواک د ژبي ځواک دے ولي چي دا د روح تارونه خېږي ، زړونه ګرمَوي او د انساني احساساتو تسکين کوي -

هره ژوندۍ ژبه د مُحرك په توګه يو بهاند تهذيبي عمل لري[17]- اجتماعي نفسيات يې د همدغه تهذيبي عمل په نتيجه کي وده کوي- د ژوندۍ ژبي دبهاند تهذيبي عمل او خاص کلتوري محرکاتو لامتناهي سلسله ، د ژونګ د اجتماعي لاشعور د نظريې عکاسي کوي- لکه مخکي چي يې وضاحت وشو ، د اجتماعي لاشعور په جوړښت کي له زرګونو کلونو راروان بې شمېره کلتوري محرکات او تهذيبي ارزښتونه ګډون لري- په پښتو لِټرېچر کي هم د قام د بهاند تهذيبي عمل بې شمېره مثالونه شتون لري- د بېلګې په توګه د حميد بابا[18] دا شعر وګورئ چي د ' قول ' يا 'بول ' او يا 'پښتو ' پښتني کلتوري ارزښت پکښې په ډېر ښکلي انداز بيان شوے دے:

قول وبول په ژوندون نۀ شي نورَولے
ځکه ځان په قول وژني پښتانۀ

د ټولني زياتره وګړي يو رنګه شعوري فېصلې کوي لګيا دي او اجتماعي سائکي يې بلکل واضح ده- همدغه يې اجتماعي شعور دے- د اجتماعي شعور په شان اجتماعي لاشعور هم د ليکوالو، شاعرانو او اديبانو په يو رنګه لاشعوري مېلانونو کي ښکاري- تر څو چي د خوبندو ژبو څخه د استفادې تړاو دے نو زۀ فکر کوم چي ترې په ګټه اخستلو کي يې ښايي چي هيڅ خنډ هم نۀ وي خو اثرات يې بايد چي د معقوليت تر دايره دباندي نۀ وي- پرمعقوليت ځکه ټينګار کوم چي د هرځواک مثبت او منفي اړخونه وي- ژبه اعتماد جوړوي او ماته وي يې هم- دروغ او ريشتيا دواړه په ژبه پوري اړه لري خو اصل قوت يې ريشتيا دے-

لنډه دا چي د انسان اصل داخلي قوت د دۀ ذهن دے او ژبه يې په خارجي دنيا کي د اظهار تر ټولو مُهمه ذريعه ده- چونکي تخليقي تنده په انساني ذهن کي راپاځيږي او په ژبه يې بشپړ اظهار کېدلای شي ځکه يې نو يو له بله سره ټينګ تړاو شته- په تخليقي عمل کي ذهن او ژبه هر کله سره ملۀ وي، که څۀ هم د تخليقي تندي شدت په ټولو خلګو کي يو شانتي نۀ وي او د اظهار انداز يې هم جدا جدا وي- همدغه راز د نړۍ د بېلا بېلو قامونو ژبي يو له بله بېلي دي

خو په رېښو کي څۀ نۀ څۀ ګډ ارزښتونه هم سره لري- ولي چي تړاؤ يې د يوې نۀ يوې ژبنۍ ډلي سره دے- لکه چي د هر انسان بڼه د بل انسان څخه بېله ده او د انسان په حېث يې په شکل کي ډېر څيزونو سره ورته هم دي ، همدغه شان د خلګو په ژبو کي د توپير مسئله ده چي د بېلا بېلو ژبو سره سره يې ډېر لفظونه سره ورته هم دي- ځکه نو د سوچه ژبي خبره هغومره مبهمه ده لکه چي د هټلر د سوچه نېشنليزم تصور ؤ- هره ژبه ځان لره يوه بېله ژبه ضرور ده خو د خوېندو ژبو سره يې د لفظونو نزدېکت او اشتراك فطري دے- د هر تخليق کوونکي خپل بېل ژَبنے انداز وي چي ددۀ تشخص په کيږي خو په اظهار کي يې سماجي او کلتوري اثرات هم وي- لکه ژوندۍ ژبي چي وغوره بدلون ته هرکله تياري اوسي او کلتوري اشتراك په ورين تندي قبلوي همدغه شان يو آ ګاه تخليق کوونکے تخليق د ژوندون د ښېګړي په موخه کوي ، نۀ چي تش ادب لره- دژبي ځواك دغوره خوځښت په موخه په ښه توګه په کار راوست کېدای شي خو ژبپوهنه ورلره ضروري ده- او دا د خوېندو ژبو سره په ګام د ترقۍ سفر ته په دوام ورکولو ممکن دے- موږ دا منو چي د نړۍ هره ژبه ځان لره يوه مهمه ژبه ده او هر قام په خپلو جغرافيايي حدونو کي د احترام وړ دے خو خپله ژبه ته په سپك نظر کتل روا نۀ ګڼو ، ځکه نو دروېش[19] وايي چي:

موږ بس دا ورسره نۀ منو دروېشه!

چي پښتون دي تل همدا رنګه ويدۀ وي

## اخځليك


1- ډينين ، فرانسيس پي ، 'عا مه ژبپوهنه(General Linguistics) '
جارج ټاون يونيورسټۍ پرېس ، ۱۹۹۵

2- ډنبر رابين ، د ژبي وده ، 'ګپي او ارتقا '
(Grooming, Gossip, and the Evolution of Language)
هاورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۸

3- سويشر ، کلېريس ،
The Beginning of Language: Opposing Viewpoints
يعني 'د ژبي ابتدا' ګرين هېون ، ۱۹۸۹

4- ويټجن ستين ، 'فلسفيانه جاج' ، (Tractatus Logico philosophicus)
د روټلېج چاپ چي په انګرېزي کي دPhilosophical Investigation
تر عنوان لاندي بلېك وېل يې بيا ترجمه هم چاپ کړے وه —

5 - کا مري ، برنارډ ، The World's Major Languages ،يعني
'د نړۍ لويي ژبي' آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۰ —

6 - اولف کېرو ، پښتانه The Pathans: The Birth of Pashtu
مېکميلن کمپني لندن ، نيويارك اېسټي مارټن پريس ، ۱۹۵۸

7 - حبيبي عبدالحی ، 'د افغانستان لنډ تاريخ' ، ژباړن عبدالرؤف بېنوا ، دويم چاپ
دانش کتابتون ، پېښور ، ۲۰۰۳-

8- هېروډوټس ، هستېريز ، ترجمه کېري ، لندن ، ۱۹۰۱

9- ا حمد علي کهزاد ، 'د افغانستان پخوانے تاريخ ' کابل ، ۱۳۳۴ -

10- جارج مارګن ستېرن ،
د افغانستان ژبي The Languages of Afghanistan
اوسلو Oslo ۱۹۲۷ او ۱۹۷۵ کابل سېمينار) -

11- وېلهلم ګا يګر ، Etymologie und lautlehre des Afghanischen

میونخ ، ۱۸۹۳ ،

12- زيار مجاور احمد ، 'پښتو او پښتانه د ژبپوهني په رڼاکي ' ، ساپي مرکز (دانش) پېښور ، ۲۰۰۱-

13- دوست شینوارے ، 'د افغانستان ژبي او توکمونه ' ، کابل ، ۱۹۷۵

14- پالوال عبدالرزاق ، دپښتنو نوے پخوانے تاریخ ، پښتو اکېډمی کوټه۱۹۹۴

15- تړے حبیب الله ، 'پښتانه' ، د پښتني فرهنگ دودي ټولنه جرمني دانش پېښور ، ۱۹۹۹

16 - رفیع حبیب الله ، 'د افغانستان لنډکی تاریخ' ، دانش ، پېښور ، ۱۳۷۸

17 - کاکړ حسن ، ' افغان و افغانستان' ، پېښور ،۱۹۸۸

18- عبدالحمید مومند ، 'د عبدالحمید مومند کلیات' دانش خپرندویه ټولنه دویم چاپ ، پېښور ، ۲۰۰۸

19- درویش دراني ، ' کر د گلو ' صحاف نشریاتي موسسه ، کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۳

* * *

# ژبپوهنه

ژبپوهنه د ژبي ساینسي علم دے چي د ژبي پر ابتدا، تشکیل، زدَکړه، پلټنه او ارتقا بحث کوي[1]- ظاهره خبره ده چي دا موضوع د دې کتاب تر دایره ډېره دباندي ښکاري- زما موخه د ژبپوهني تفصیلات تر بحث لاندي راوړل نۀ دي بلکي د ذهن او تخلیق سره چي یې څومره تړاو دے هغومره وربانديي ګاېېدل غواړم- ولي چي څوک د ژبي په بېخکیو ټکو پوهـ نۀ وي او تخلیق پکښي کول غواړي د هغۀ مثال هماغه شان دے لکه چي پایلټ نۀ وي او جهاز الوزَول غواړي، یا دا چي لامبوزن نۀ وي په دریاب ګډېدل غواړي او یا بیا دا چي بې وسلې د جنګ مېدان ته ورځي- که څوک څۀ ویَل یا لیکل غواړي ولي چي زړۀ یې ډک وي، او یا یې په بله معنا د احساس څپې وَدې ته اړ کاندي، نو بیا تر څۀ ویَلو او لیکلو لمخه باید چي د تقریر او تحریر په آدابو ځان پوهـ کړي- د پښتو متل دے چي "ټُوکلي لاړي نۀ ختَل کیږي"یعني تر خولۀ وتلے لفظ یا لیکلے تحریر بېرته نۀ راګرځي- ځکه نو په ژبپوهنه کي بېخکي او مهم ټکے د لفظونو

سموالےدے چي تر هر څۀ ډېر اهمیت لري- ورسره ورسره د لفظونو سم مطلب اخستل هغومره مهم دے لکه چي يې سم اِستعمال لازمي دے- ژبپوهنه د لفظونو د سم او معقول ځواب ورکولو پر اهمیت هم بحث کوي ولي چي معقولیت په ژبپوهنه کي خپل بېل حېثیت لري- لکه چي په څرګندون نمبر۱۹ کي صفا ښکاري ، د سمو لفظونو ، سم مطلب او سم ځواب سره سره ، پر بول یا قول سم عمل هم د ژبپوهني مهم جُز دے ولي چي 'لفظ' ښۀ ، بد ، حکم ، وعده ،




څرګندون نمبر ۱۹ د ژبپوهني بېلا بېل اجزا

جنګ ، امن ، درد ، زېرے ، ریشتیا او دروغ ، هر څۀ کېدای شي- دا صحي ده چي تقریباً هرکس له ازله د ګای کولو فطري صلاحیت لري او په همدغه صلاحیت دے تر نورو مخلوقاتو برتر ګڼل کیږي ، خو ژبه زدَکړه هم غواړي او زدکړه يې خپلي سطحې لري- مورنۍ ژبه هغه اجتماعي ژبه ده کومه چي هر ماشوم يې له خپل ماحول څخه ورو

ورو زده كوي او په خپل زيار يې تر اوچت مقام پوري رسوي- د يوۀ ګاى سم مطلب اخستل ، سم ځواب وركول ، د لفظونو سم انتخاب او بيا سم عمل ورباندي كول په خپله مورنۍ ژبه كي تر ټولو نورو ژبو آسانه دي-

د ماشوم ذِهن يو سپين كاغذ غوندي څيز دے- دكور ، كلي ، خاندان اوماحول بېلا بېل خلګ هره روځ څۀ نۀ څۀ ورباندي ليكي- څوك ورسره مينه كوي ، خندَوي يې او څوك يې ژړوي هم- كله د ښادۍ ماحول وي او د خوند خبري كيږي خو كله كله ماشوم د غم جذبې ويني ، محسوسوي يې او د درد خبري هم اوري- ماشوم چونكي تر هر چا وخپلي مورته ورقريب وي ځكه نو دے په منطقي توګه هماغه ژبه زده كوي كومه چي يې مور وايي- ښايي چي په دغه وجه مورنۍ ژبه هماغه ژبه ګڼل كيږي كومه چي ماشوم يې له خپلي مور څخه زده كوي- مګر دا خو تر يوۀ حده صحي ښكاري ولي چي د هغو كسانو هم مورنۍ ژبه وي كوم چي خپلي مور نه وي لوى كړي او يا يې مور د زوكړي پر وخت په حق رسېدلې وي- ځكه نو مورنۍ ژبه هغه اجتماعي ژبه ده كومه چي ماشوم يې له خپل ماحول څخه زده كوي- شاعرانه توضيح يې دا هم ده چي مورنۍ ژبه هغه ده په كومه كي چي څوك خوب ويني- په هر حال د مورنۍ ژبي زدكړه First (Language Acquisition )د ژبپوني يا لسانياتو يوه پېچېلې مسئله ده[2]- ماشومان په فطري توګه داسي ډېر خاصيتونه لري چي پر ځمكه د پايېدونكو ټولو ځناورانو څخه بېل دي او دوى د مورنۍ ژبي په

زدَکړه آماده کاندي- د دوی د دماغ ساخت ، د ژبي جوړښت او دحلقی ژبي په خواوشا د غړ پاڼو یا ږغ پاڼو (Vocal cords )قدرتي ترتیب داسي عوامل دي چي همه وخت د ژبي په زدَکړه کي دماشومانو مدد کوي-

ظاهره ده چي په ماحول کي مور ، پلار ، ورور او خور د ماشوم په لساني تربیّت کي لوی لاس لري- د ماشوم ژبه او لهجه دواړي د همدغو عزیزانو په وجه جوړیږي ولي چي د مور سره سره پلار ، ورور ، خور او نور عزیزان هم ماشوم ته نکلونه ، داستانونه ، غاړي اوسندري اورَوي- اوّل اوّل خو داټول ماشوم لره فقط یو بې معنا غږ غږ وي- ماشوم په دغو بېلا بېلو غږونو کي د حرفونو او لفظونو د توپیر ځخه بې نیازه وي- داځکه چي د مور او کهول په موجودګي کي ماشوم ته د هیڅ یوۀ څیزضرورت هم نۀ وي- دکهول ټول وګړي د دۀ هر ضرورت پوره کوي- ورو ورو ماشوم د لفظونو او حروفو تر منځ په توپیر پوهـ کیږي- چونکي هره روځ ماشوم په بېلا بېلو آوازونو کي د لفظونو او حرفونو یو خاص ترتیب اوري او یوه خاص غوندي لهجه یې تر سماعت لاندي راځي ، ځکه نو په غېر شعوري توګه د لفظونو او حرفونو د توپیر سلسله هم دوام لري- کله چي ماشوم د لفظونو او بېلا بېلو څیزونو تر منځ په تړاۀ او په معنا پوهـ شي نو بیا د ژبي زدکړه هم ورته آسانه شي-

ځینې ماشومان ډېر ژر د لفظونو او څیزونو تر منځ په رشته پوهـ شي مګر ځینې کلونه واخلي او بیا هم سم نۀ شي ګاېېدلای- ځکه

نو د وخت حتمي تعیُن ممکن نهٔ دے چي ماشوم به کله ژبه زده کوي خو زياتره ماشومان د دوو کالو تر عمره پوري د ژبي بنيادي ټکي ويَلاى شي- داسي ماشومان هم شته چي تر پنځو کالو پوري لاهم صحي نهٔ شي ګاېدلاى[3]- کله کله په ژبه کي مورنۍ خرابي وي او ماشوم تر ډېره پوري نهٔ شي ګاېداى- د ژبي د زدکړي تړاؤ له اورېدو سره هم وي- که په يوه يا بله وجه ماشوم صحي نهٔ اوري نو بيا هغهٔ ګاېداى هم نهٔ شي- ځکه نو دا ضروري ده چي د ماشوم تر ډېره د نهٔ ګاېدو وجه معلومه کړله شي او دغوړونو معاينه يې هم وکړله شي-

ورو ورو ماشوم د ژبي د زدَکړي شعوري کوښښ هم پېل کړي- دے يو يو لفظ په وارو وارو وايي او کوښښ کوي چي زده يې کړي ، لکه "بابا" او "ادې" - کله چي بيا ماشوم مکتب ياسکول ته ورداخل شي نو دغه شعوري کوښښ د تربيّت په توګه هم ورکړل کېږي- استاد ورته وايي چي الف انار ، ب بنګړے ، ت ترازو- او ورسره ورسره د دغو څيزونو شکلونه هم ښکاره کوي چي ښهٔ يې وپېژني- دغه شعوري سفر تر هغه وخته پوري جاري وي تر څو چي ددهٔ په ژبه کي پخوالے راځي- غرض دا چي پر دغه سپين کاغذ زياتره لومړے ليك دمور وي ، بيا د کهول د بېلا بېلو غړو او تردغه وروسته د ماحول يعني دوستانو ، استادانو او پوهانو- د مورنۍ ژبي ابتدا مور کوي خو تر انتها پوري يې يوه داسي لامتناهي سلسله ده چي کله هم نهٔ شي ختمېداى[4]- ځکه نو ژبه د قام د کلتور يوه مُهمه برخه ده او د ژبي خپل کلتور هم يو حقيقت دے چي دغه ژبه له نورو ژبو څخه

ښله او منفرده په ښکاري- د بېلګې په توګه د اوروپا خلک زياتره دا وايي چي جرمنۍ د فلسفې ژبه ده ، فرانسوي د ميني او انګرېزي د کاروبار ژبه ده- د ژبي په کلتور کي له پېړيو راروان تهذيبي ، تاريخي ، روحاني ، معاشي ، معاشرتي او تخليقي ارزښتونه ګډ وي ، ځکه نو دا د اجتماعي کلتور يوه ډېره مغزنه او خوږه برخه ده- کۀ څوك ټول عمر د خپلي مورنۍ ژبي خدمت وکړي بيا يې لا هم حق نۀ شي اداکېدلای-

ژبپوهنه چونکي د ژبي ساينسي علم ته ويل کيږي ځکه نو د نورو ساينسي علومو په شان لوی شمېر مهم ښاخونه لري چي فونېټکس ، فونولوژي ، مورفولوژي ، سينټېکس ، سيمېنټيکس او پريګمېنټيکس پکښې شامل دي- فونېټِکس د غږونو يا ږغونو علم ته ويل کيږي- غږونه د مارغانو ، ځناورو او ځينې نورو څيزونو هم کېدلای شي خو انساني آوازونه په ډېرو حوالو له نورو غږونو څخه بېل دي[5]- ولي چي انسان داسي فطري خاصيتونه لري چي دے له نورو ځناورو څخه بېل په ګڼل کيږي او همدغه يې د مورنۍ ژبي په زدکړه آماده ساتي- لکه مخکي چي يې ذکر وشو د دماغ جوړښت ، د ژبي ساخت ، د غږونو پېچيده نظام او د غږ پاڼو خاص ترتيب هغه عوامل دي چي انسان ته يو امتيازي حېثيت ورکوي او په فطري توګه يې د ژبي په زدکړه آماده کاندي- اوّل اوّل خو ماشومان بېلا بېلو څيزونو ته اشاره کړي او پوښتنه کوي چي " آ " - مور يا د کور بل يو کس ورته ځواب ورکوي چي " قلم" يا "اوبۀ" - د ماشوم" آ " يو غږ دے چي څۀ خاص معنا نۀ لري خو قلم او اوبۀ دواړۀ بامعني

لفظونه دي- دماشوم دغه فطري صلاحيت چي دے ورو ورو د غږ او حرف څخه تر لفظونو ، خبرو ، سندرو ، تقريرونو او تحريرونو پوري سفر په کولای شي ، لا تر اوسه په بشپړه توګه نه دے معلوم کړل شوے- خو دا هر چا ته پته ده چي ددې اړه په ډېرو مورنيو خاصيّتونو پوري ده- همدغه راز فونولوژي هغه علم دے کوم چي په يوه ژبه کي د خاص خاص غږونو مطالعه کوي- مورفولوژي بيا د ژبي د بېلا بېلو لفظونو پر جوړښت بحث کوي- همدغه راز سينټېکس د فقرو او پېراګرافونو ساخت تر بحث لاندي راوړي- سيمېنټيکس د ژبي د لفظونو د بېلا بېلو مفاهيمو او مطلبونو علم دے- پرېګمېنټيکس بيا پر دې بحث کوي چي ژبه په کومه اړه استعمالېږي ، هماغه مطلب ترې واخست شي کوم چي په دغه اړه بلکل صحي وي- کنې د هري فقرې ډېر بېلابېل مطلبونه کېدلای شي-

په ساينسي توګه د ټولو انساني ژبو د ارتقا هم څو خال خال ګډ اصولونه دي[6] ، د کومو بحث ښايي چي دا وخت بې ځايه وي خو بيا هم مورنۍ ژبه هرچا لره تر نورو ژبو ورتېره او خوږه ده- دمورنۍ ژبي دغه خاص نفسياتي اثر دخلګو هغه مورنۍ وابستګي ده کومه چي دوی يې په لاشعوري توګه د خپلي ژبي سره لري- همدغه نفسياتي اثر دے چي د پختيا تر بېلا بېلو مرحلو وروسته هم د کس په تخليقي اظهار کي ليدل کيږي- کله کله خو داسي هم وي چي په ټولنه کي د ژبي سره عقيدت د ايمان ترحده ورسيږي او دځينو پوهانو په تنقيدي نظر د لساني عصبّيت شکل اختيار کړي- مورنۍ ژبه

يقينا د خپلوی تقاضا کوي خو نهٔ چي د عصبيّت تر حده- د مورنۍ ژبي خپلوي داده چي وَيونکي يې د ليك لوست او د دفترونو ژبه کړي- علمي ، ساينسي او هُنري ژبه يې کړي او په همدغه انداز يې په نړيوالو وپېژني- کهٔ يوه ژبه د چا خپله ژبه وي او مورنۍ ژبه يې ګڼي نو بيا ښايي چي پکښې د نورو ژبو په شان معياري ليك لوست وکړي- تراخهٔ ترې لري کړي او خوارهٔ يې په خلګو وپېژني- ښکلے ادب پکښې تخليق کړي چي ژبه درندتيا او ارزښت په وومي- اخبارونه او رسالې يې په بيه واخستل شي چي د مينه والو ليکوالو حوصلې په لوړې شي او دوی وَدغه شان کارونو ته دوام ورکړي- سرمايه داران که پخپله ليك لوست نهٔ شي کولای نو بايد چي د خپلي ژبي اخبارونه ، رسالې او کتابونه چاپ کړي چي تر خلګو په کمه بيه ورسول شي-

هره ژبه د يوهٔ اولس مورنۍ ژبه وي خو کله کله خلګ په ټولنه کي دوو ، درو او يا زياتو ژبو ته اړتيا لري- ددغو ژبو پر مورنۍ ژبه هم اثرات کيږي- ورو ورو يې د مورنۍ ژبي وکېبلري ورسره زياتيږي- د بېلګې په توګه دعربي ، فارسي او هِندي ژبو ډېر لفظونه خو له پخوا څخه د دې سيمي په بېلا بېلو ژبو ګډ شوي وو ، اوس يې موږ وينو چي د ساينسي او ټېکنيکي علومو په ترڅ کي د ډېرو اوروپايي ژبو لفظونه هم په تواتر سره په ګډيږي- نن سبا پر علمي سطحه بېلا بېلي ساينسي اصطلاګاني د دغو وړو وړو ژبو په وکېبلري ورګډيږي او د کمپيوټر سره تړلي ډېر ټېکنيکل لفظونه هم د دغو ژبو د يو شمېر پروګرامونو برخي ګرځي- د وړو ژبو په وکېبلري کي د دغو

لفظونو زياتوالے که په ويښه وي نو به يې د پرمختګ زېرے وي او که داسي نۀ وي نو به يې ورو ورو دغه ژبي تر اثر لاندي پرتې وي- باچاخان به ويَل چي سېلاب راشي نو ويښ خلګ خپلي ځمکي په اوبه کړي ، مګر ويدۀ خلګ پکي لاهو شي- نه پوهېږم چي دا به د دې سيمي د وړو ژبو د پرمختګ زېرے وي او که د لاهو کېدو پېغام ؟

الفابېټ يا تهجي حرفونه يو شمېر هغه علامتونه دي کوم چي هر يو د ژبي يوۀ خاص غږ لره مخصوص وي او هماغه ځای په کار راوستل کيږي چيري چي دغه غږ ظاهرَول مقصود وي- هره ژبه څۀ مخصوص غږونه يا ږغونه لري چي د بلي ژبي ويونکي يې نۀ شي ادا کولای- د بېلګې په توګه پښتانۀ د عربي او انګرېزي ژبي ځيني غږونه لکه ث اوTh نۀ شي ادا کولای- همدغه راز د پښتو ځيني غږونه لکه ږ ، ښ ، ځ او څ په نورو ژبو کي صحي نۀ شي ادا کېدلاي-

نۀ خو پښتانۀ د فارسي ، انګرېزي ، عربي او هِندي ژبو ټول غږونه په آساني ويَلای شي او نۀ پارسيبانان ، انګرېزان ، عربيان او هِنديان پښتو په صحي توګه ويَلای شي- دا هم يو حقيقت دے چي د پښتو ژبي د تهجي حرفونو او بيا د بېلا بېلو خاصو لفظونو د ځانګړو سپېلينګونو په وجه ، دا د نړۍ په مشکلو ژبو کي شمېرل کيږي- پخپله د بېلا بېلو سيمو پښتانۀ هم خپله ژبه په بېل بېل انداز وايي او په جُدا طرز يې ليکي هم- د بېلګې په توګه په پښتو ژبه کي ي ، ې ، ے ، ۍ او ی په بېل بېل انداز ويل کيږي او سپېلينګ يې هم جدا جدا دے- همدغه راز په ځينو سيمو کي د ښ ، خ او ګ مسئله

ده ، يا بيا د گ ، ږ او ژ مسئله ده- ځکه نو پښتو د سپېلنګ په حساب د نړۍګرانه ژبه ده[7]- تر څو پورې چې د غږونو د تفاوت مسئله ده نو دا يوازې د پښتو سره نۀ ده بلکې د هرې ژبې سره او پر هره سيمه ليدل کېږي- کله چې د يوې سيمې اوسېدونکي په يوه يا بله وجه د ژبې څۀ خاص غږونۀ په صحي توګه نۀ شي اداکولای نو يې بيا په بدل انداز ادا کوي ، لکه چې د ننګرهار او خېبر پښتونخوا خلګ ږ په ګ او ښ په خ بدلوي- همدغه راز په يورپ کې جرمنيان ټ په ډ او انګرېزان ت په ټ بدلوي-

د هرې ژبې خپل بېل غږونه وي چې ژبه په پېژندله کېږي- د بېلګې په توګه د پښتو ژبې غږونه يا فونمز له نورو ژبو څخه په ډېرو حوالو بېل دي- مثلاً "ورور" په څلور حرفه ليکل کېږي او ږغونه فونمز هم پکښې څلور دي خو د وزن په حساب يو سېلاب ګڼل کېږي- بل مثال يې "دروند" دے چې په پنځه حرفه ليکل کېږي او فونمز يې هم پنځه دي خو په شاعرۍ کې د وزن په حساب يو شمېرل کېږي- همدغه راز "ولاړ" او "وَلاړ" دوه بېل لفظونۀ دي ، خپل خپل بېل مطلب يې دے ، درې فونمز لري ليکن يو رنګه ليکل کېږي- "سپك"او "پك" دوه جُدا لفظونۀ دي ، خپل خپل بېل مطلب لري په يوۀ کې درې غږونه دي او په بل کې دوه خو په شاعرۍ کې په يوۀ وزن شمېرل کېږي او سېلاب يې يو دے- په هره ژبه کې پر ډېرو غږونو زور يا سټرِس ورکول کېږي خو دغه سټرِس او نۀ سټرِس يې په جمله کې د استعمال له ځايه سره اړه لري- د بېلګې په

توګه "رنګ" يو سېلاب ټکے دے چې په شعر کې کلهورباندې زور ياسترِس راځي او کله بيا نۀ راځي مګر"رنا" دوه سېلابه ټکے دے او په دوه سېلابه ټکي کې سټرِس خامخا وي- په "رنا" کې پر دوهم سېلاب سټرِس شته- په لفظ "بغل" کې دوه سېلابه دي پر"به" سټرېس نشته ليکن پر"غل" زور يا سټرېس شته- فونمز او سېلابونه دشاعرۍ په وزنونو د سرخلاصولو د پاره ډېر مهم دي او د پښتو عروضو بنسټ هم د عږونو او سېلابونو پر دغه نظام ولاړدے- چونکې پر پښتو عروضو درويش[8] ډېر کار کړے دے ځکه نو که څوك غواړي چې په دغو ټکو نور هم سر خلاص کړي ، د دۀ کتاب "پښتوعروض"دي تر نظر تېر کړي-

د هرې ژبې د ليکلو خپل انداز وي خو دا د وخت په بهاو کې بدلېدلاى هم شي- د بېلګې په توګه د پښتو د ليکلو سيسټم تر اسلام وړاندې دا نۀ ؤ کوم چې اوس دے- داسې برېښي چې هغه وخت د پښتو ليکلو انداز ښايي چې هماغه ؤ کوم چې د يوناني ژبې ؤ ، ولې چې تر سکندراعظم وروسته هم تر ډېره وخته د افغانستان خال خال سيمه واکۍ د يوناني حکمرانانو تر اثر لاندې وې- په کندهار کې موندل شوې يوه زړه نخښه داسې هم ده چې تر اسلام وړاندې يوناني خط او آ رامي خط دواړه پکښې ليکلې دي- يوه بله نخښه له تخارې درې څخه هم موندل شوې ده چې الفي نخښه ده ، ځکه نو دا نۀ شي ويل کېداى چې تر اسلام وړاندې پښتو څنګه ليکل کېده- خو تر اسلام وروسته د پښتو رسم الخط هماغه دے کوم چې

د عربي ژبي دے- اوس هم موږ پښتو په عربي رسم الخط کي ليکو- پر هره ژوندی ژبه د خوا وشا د کلتورونو څۀ نۀ څۀ اثرات کيږي او پر پښتو هم د اسلامي پير لوی شمېر اثرات شته- په دغه دور کي مذهبي علوم يا خو په عربي ژبه کي وو او يا بيا په فارسي کي- درسِ نظامي له پېړيو څخه په همدغو ژبو کي کېدے او په پښتنو کي لاتر اوسه هم دوام لري- د زماني په اوږدو کي په پښتو ژبه د عربي او فارسي د ډېرو لفظونو سره سره ، د جغرافيايي نژدېکت او ګډ تعليمي نظام په وجه د هِندي او اردو هم ډېر لفظونه ګډ شوي دي- که څۀ هم دا وخت پښتو د نړۍ په لويو ژبو کي شمار ده او د پښتو ژبي د وَيونکو تعداد تقرياً پنځۀ کروړه يعني پنځوس ميليونو ته رسيږي خو د پښتو ژبي د ليکونکو تعداد ډېر کم دے- که يې وَيونکي په تېکير سره ليکنه او لوستنه خپل مرام وګڼي نو به پښتو ژبه هم د علمي او ساينسي ژبي په توګه مخ په وړاندي روانه شي- اوس په پښتو کي د معياري ليك لوست اشد ضرورت دے ولي چي پښتو ژبه نۀ يوازي د نړۍ په هر ملك کي ويَل کيږي بلکي د لوی شمېر هېوادونو د نامتو نشرياتي ادارو څخه نشر کيږي هم- کۀ څۀ هم د نړۍ د بېلا بېلو څېړونکو نظر په دې اړه يو نۀ دے خو پر عالمي سطحه د بېلا بېلو لويو ژبو د وَيونکو شمېر څۀ په دې ډول دے[9]:

۱ - چيني ژبه ۱۲۲ کروړۀ وَيونکي لَري

۲ - عربي ژبه ۴۳ کروړۀ وَيونکي لري

| | | |
|---|---|---|
| ۳ - | هيندي ژبه | ۳۷ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۴ - | انګرېزي ژبه | ۳۴ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۵ - | سپېنش ژبه | ۳۲ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۶ - | بنګالي ژبه | ۲۱ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۷ - | پورتوګي ژبه | ۱۸ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۸ - | روسي ژبه | ۱۷ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۹ - | جاپاني ژبه | ۱۲ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۰ - | جرمني ژبه | ۱۰ کروړه وَيونکي لري |
| ۱۱ - | فرانسيسي ژبه | ۸ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۲ - | کوريايي ژبه | ۸ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۳ - | جاوانيسي ژبه | اونيم کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۴- | تلو ګو ژبه | ۷ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۵ - | مرېټهي ژبه | ۷ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۶- | وېټنامي ژبه | ۷ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۷- | تامل ژبه | شپږنيم کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۸ - | اطالوي ژبه | ۶ کروړۀ وَيونکي لري |
| ۱۹ - | ټُرکي ژبه | ۶ کروړۀ وَيونکي لري |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۰ - | اردو ژبه | ۶ کروړه وَيونکي لري |
| ۲۱ - | پنجابي ژبه | پاوکم شپږ کروړه وَيونکي لري |
| ۲۲ - | يوکرېني ژبه | پنځنيم کروړه وَيونکي لري |
| ۲۳ - | فارسي ژبه | ۵ کروړه وَيونکي لري |
| ۲۴- | پښتوژبه | پاوکم پنځهٔ کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۲۵ - | ګجراتي ژبه | څلورنيم کروړه وَيونکي لري |
| ۲۶ - | تهايي ژبه | څلورنيم کروړه وَيونکي لري |
| ۲۷ - | پولش ژبه | څلورنيم کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۲۸ - | ملايالم ژبه | ۴ کروړه وَيونکي لري |
| ۲۹ - | کناډا ژبه | درېنيم کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۳۰ - | اوريا ژبه | سوا درې کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۳۱ - | برمي ژبه | سوا درې کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۳۲ - | آزربائيجاني | ۳ کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۳۳ - | سوندا ژبه | پاوکم درې کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۳۴ - | رومن ژبه | پاوکم درې کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۳۵ - | بهوجپوري | دونيم کروړهٔ وَيونکي لري |
| ۳۶ - | هاوسا ژبه | دونيم کروړهٔ وَيونکي لري |

۳۷ - مېتهيلي دونيم کروړهٔ وَيونکي لري

۳۸ - سربي ژبـه ۲ کروړهٔ وَيونکي لري

۳۹ - ډچ ژبـه ۲ کروړهٔ وَيونکي لري

۴۰ - ملايي ژبـه ۲ کروړهٔ وَيونکي لري

۴۱ - اُزبکي ژبـه ۲ کروړهٔ وَيونکي لري

د ژبو دغه بالا فهرست که څهٔ هم مُستقل څيز نهٔ دے او نهٔ يې د ويونکو تعداد په منطقي توګه حتمي ګڼل کېدای شي ، خو په پرتليزه توګه د نورو ژبو په مقابله کي د هري يوې ژبي د مقام تعين کوي او د هغي ژبي اهميت په څرګندېږي- پَرته له دغو لويو لويو ژبو چي د وَيونکو شمېر يې تر دوه کروړهٔ بالا دے ، بې شمېره وړې وړې ژبي داسي هم شته چي د نړۍ مُهمي ژبي خو دي مګر د ويونکو تعداد يې تر دوه کروړهٔ چونکي کم دے ځکه نو په دې جدول کي ګډي شوي نهٔ دي-

کهٔ څهٔ هم وَيونکو ته يې هيڅ پته نهٔ وي خو د نړۍ هره ژبه په تواتر سره بدلېږي - د دې سيمي په ژبو کي هم د نورو ژبو په شان د وخته سره سم بدلون ليدل کيږي- د ميډيا د پر مختګ سره د رابطې ژبه اوس ورو ورو د ليك او لوست ژبي ته رانزدې کيږي- عام خلګ اوس د راډيو او ټېليوژن له لاري د بېلا بېلو سيمو لفظونه اوري او په کار يې راولي- که څوك "په منګي کښې اوبه نشته"اوس "په

منګي كي اوبۀ نسته"وليكي نو بده نۀ ګڼل كيږي ولي چي خلک د لهجو توپير د صحي او غلط په تالۀ نۀ تلي بلكي په آساني يې قبلوي- همداراز "زۀ يې غواړم" كه اوس "زې غواړم" وليكل شي نو دومره بده نۀ ګڼل كيږي لكه چي به تېر وخت ځينې ليكوالو ګڼله- "معنا" اوس"مانا" هم ليكل كيږي ، "قيصه" اوس "كيسه" شوه- "په دې حقله" اوس "په دې هكله" هم ليكل كيږي- دغه شان بدلون په بې شمېره لفظونو او جُملو كي ليدل كيږي- د پُولي په دې خوا پر پښتو ژبه د هِندي او اردو اثرات برېښي او په آخوا يې د فارسي او عربي رنګ په مزاج ګډيږي- د دې خوا پښتانۀ د لهجې د توپير دپاره دا صحي ګڼي چي "ے" په كار راولي خو د پُولي په هغه خوا ددغه ټكي ضرورت نۀ محسوسيږي- اوس سوال دادے چي په عِلمي توګه دا مسئله څومره مُهمه ده؟ زما په نظر دا څۀ د تشويش خبره نۀ ده بلكي يو ارتقايي عمل دے او تر ابده به جاري وي- د نړۍ په ټولو ژبو كي همدغه شان بدلون ليدل كيږي- زړه جرمنۍ ژبه اوس په جرمني كي هم خال خال كسان ويَلاى شي- د اولسمي پېړۍ انګرېزي اوس په اِنګلېنډ كي هم نۀ څوك ليكي او نۀ يې وايي-

د زمانې په بهاو كي د نورو بې شمېره څيزونو په شان په ژبه كي هم بدلون راځي- د ماحول د بدلېدو سره ټكي بدليږي ، لفظونه تغير خوري ، غږونه بدليږي او د فقرو په جوړښت كي هم بدلون راځي- د وخت په تېرېدو لهجې سره رانزدې كيږي ، د لفظونو زخيره زياتيږي ، غږونه وحدت پېدا كوي او د ژبې پراختيا په كيږي- د ليك لوست سره هم په ژبه كي بدلون راځي- د نورو علمي ژبو ټكي په غير

ارادي توګه له يوې ژبي څخه بلي ته اوړي او را اوړي- دا رنګه په ژبه کي په تواتر سره بدلون راځي-ژبپوهنه چي پرکومو سطحو کيږي لنډيز يې څۀ په دې ډول دے:

عمومي ژبپوهنه

اطلاقي ژبپوهنه

تقابلي ژبپوهنه

تاريخي ژبپوهنه

توضيحي ژبپوهنه

تجزياتي ژبپوهنه

نفسياتي ژبپوهنه

عصرياتي ژبپوهنه

په عمومي ژبپوهنه[3] کي د ژبي د جوړښت جايزه اخستله کيږي او پر همدغه بنسټ يې د اصولونو جوړولو هلي ځلي کيږي- په اطلاقي ژبپوهنه کي تر جوړشوو اصولونو لاندي د ژبي د ليك او ادبياتو جايزه په عملي توګه اخستله کيږي- که دوې يا درې ژبي يا د ژبو يوه ډله چي ډيري ژبي پکښې ترمطالعه لاندي وي ، په تاريخي توګه پرتله کيږي نو بيا تاريخي ژبپوهنه بلل کيږي- که چيري د بېلابېلو ژبو د ساخت جايزه په دې توګه اخستل مقصود وي چي د دغو ژبو د جوړښت خښتي يوه له بلي سره پرتله شي نو دا تقابلي يا پرتليزه ژبپوهنه ده- توضيحي لسانيات د ژبَنيو مسئلو وضاحت کوي چي د

ژبي د اړو شخړو تشريح په وشي- اپنَلايټك يا تجزياتي ژبپوهنه د ژبي د هېئت مطالعه کوي- په نفسياتي ژبپوهنه کي د ژبي د ويونکي نسل د نفسياتي روَيو مطالعه کيږي- عصرياتي ژبپوهنه د زمانې په اوږدو کي د ژبي د ارتقايي پړاوونو سره تړاؤ لري او پر همدغه اړخ يې بحث کوي-

لکه مخکي چي بحث ورباندي وشو، په ژبه کي اصل اهميت د غږونو يا ږغونو دے ولي چي هر غږ د حواسو په ذريعه د انسان پر اعصابو خپل بېل اثر لري- د هري ژبي خپل خپل غږونه دي چي تر ډېره حده يوه ژبه له بلي څخه بېلَوي- د همدغو غږونو پر بنسټ هري ژبي ته ځانګړے تشخص ورکړل کيږي او د بېلا بېلو لهجو تړاؤ يې له همدغو غږونو سره وي- د هري سيمي سپېڅلي خلګ د غږونو استعمال دخپل ضرورت پر بنسټ کوي او بيا 'وينا' ترې جوړيږي- غږونه د وېنا هغه مرحله جوړوي چي معنا لا ځان نهٔ وي څرګند کړے- له غږونو بيا لفظونه جوړيږي او دلته معنا ځان ښکاره کړي- بيا جملې راشي او له الفاظو څخه خبره جوړه شي- دا کله پېغور کله ښکنځا شي، کله دُعا کله ښېرا ترې جوړه شي- کله خندا کله ژړا شي او کله کله داسي هم وي چي سلګۍ شي، اسوېلۍ شي- غرض دا چي د عاموخلګو په ژوند کي هم د غږونو پر بنسټ د وينا اهميت څرګند دے- د ژبي په ليکلو کي د حرفونو جوړښت، دلفظونو تشکيل او بيا يې په بېلا بېلو جملو کي ترتيب هم پر دغو غږونو مبني دے- د لفظونو څخه فقرې او بيا ښکلي تحريرونه لکه ناول او

شاعري هم له دغو رنګا رنګ غږونو څخه جوړيږي چي ورو ورو و تخليقي اظهار ته بختيا او پراختيا ورکوي- همدغه راز د غږونو بېلا بېل ترتيبونه د سندرو ، غاړو او نارو په صورت کي ليدل کيږي- په موسيقي کي هم د هر ساز د غږونو د خاص ترتيب په نتيجه کي خوند پېدا کيږي او بېلا بېل سُورونه ترې کمپوز کيږي- د غږونو علم ځان لره د ژبپوهني يو بېل ښاخ دے چي اصطلاحاً ږغپوهنه يا غږ پوهنه بلل کيږي- دا علم تر ډېره حده د غږ پېدا کوونکو آلاتو د جوړښت او کارکولو پر طريقو بحث کوي- د بېلګې په توګه د يوۀ "آهنګ" تجزيه د غږ پوهني په حساب په حلق کي د ژبپاڼو د ساخت او حرکت پر بنسټ کېداى شي- د حلق ساخت او د کار کولو طريقه په ساينسي توګه د مېډيکل له لاري ممکنه ده- عام خلګ په دې هيڅکله خبر نۀ وي چي د ګايېدو په وخت د دوى د حلق حرکت څنګه وي ، د سا اخستلو طريقه يې د ګفتګو په وخت څنګه وي او د دغه عمل پر خبرو کولو او سندرو څۀ اثر وي- يو فنکار ، اديب يا شاعر کله هم په دې خبر نۀ وي چي کوم لفظونه چي دے ادا کوي د هغو په ادا کولو کي د ژبي ، شونډانو ، تالو او سږو څۀ څۀ رول دے- د صوتياتو علم د همدغه شان مسئلو حل پلټي-

اسلوب هم د ژبپوهانو مهم موضوع پاته شوے دے چي تړاؤ يې ببرته د غږونويا صوتياتو سره دے- د شاعر ، اديب او مصنّف اسلوبياتي تجزيه کوونکي د هغۀ په ليك کي ماورائيّت يا څۀ داسي خاصيَتونه لټوي چي د دۀ ليك له نورو ليکوالو څخه بېل په ثابت

شي او د ليکوال سره سره د دهٔ د دور شناخت په وشي- او دا پايله هم ترې واخسته شي چي په هغه پېر کي حالات څنګه وو- ځکه نو اسلوب په ليك کي د غړونو سره سره پر لفظونو ، طرزونو ، ترکيبونو او عروضو[7] مشتمل يو مجموعي تاثر دے- اسلوب بايد داسي وي چي د خلګو په ذهنونو کي ځاى ومومي- په ذِهنونو کي داسي نقش شي چي تر ډېره دوام ولري- ښې سندري په کلونو خلګ ياد ساتي ، ښهٔ شعرونهٔ د ذوق لرونکو په زړونو کي ځاى مومي او ښهٔ تحرير د تاريخ پر پاڼو تر ابده ځليږي-

تحقيق په ژبپوهنه کي هغومره مهم څيز دے لکه چي په تاريخ او ساينس کي دے- ژبپوهان هر کله د ژبي په حقله د حقايقو په تلاش کي وي- مواد سره را يو ځاى کوي ، پرتله کوي يې ، او بيا يې تر هر څهٔ بالاتره په ديانتداري سره د معقوليت په ګز ګچه کوي- پايله ترې راباسي او راتلونکو نوو نسلونو ته يې ور پرېږدي- ژبپوهان د تېرو شوو او اوسَنيو حقايقو په رڼا کي د ژبي د مستقبل مطالعه هم کوي او د ستدلال په ترازو يې تلي[10]-

ژبه يو سماجي عمل دے چي د اظهار ، تخليق او ابلاغو تر ټولو ستره ذريعه ګڼل کيږي- د ژبي سره وابسته کلتوري اثرات ، تخليقي معيار ، اخلاقي ارزښتونه او روحاني وارداتونه په تواتر سره راتلونکو نسلونو ته پاتيږي[11]- همدغه قيمتي خزانې دي چي هر نسل ته په ميراث کي ور پاتيږي او ريښې يې د وطن په ګُټ ګُټ کي خورې ورې وي- خو د هر سماجي عمل په شان په ژبه کي هم د زمانې سره

سم ، په تواتر سره بدلون راځي روان وي- د بېلګې په توګه دا په آساني سره ثابتېداى شي چي پر اوسنۍ پښتو د عربي ، فارسي ، هندي او انګرېزي ژبو ګڼ شمېر اثرات شته- ځکه نو دا بحث اوس بېخي بې ځايه ښکاري چي " عبدل" دي "اودل" وليکل شي او يا دا چي "واقعي" دي "واکي" وليکل شي- تاريخ او وخت بېر ته شا ته نۀ راځي ، د نورو ژبو کوم اثرات چي د اسلام تر سايه لاندي د دې سيمي پر ژبو موجود دي دا يو ځلاند حقيقت دے او انکار ترې نۀ شي کېداى- يوازي پښتو نۀ بلکي د نړۍ ټولي ژبي د ارتقا تر بېلا بېلو پړاوونو راتېري شوي دي- انګرېزي دا وخت د نړۍ تر ټولو ژبو په علمي توګه مزې ژبه ځکه ښکاري چي د يوناني ، لاطيني او نورو مغربي ژبو سره سره يې د مشرقي ژبو اثرات هم په ورين تندي قبول کړي دي ، کنې له سره خو دا د زړې جرمنۍ ژبي يوه څانګه ده-

پايله يې دا چي د نړۍ ټولي ژبي يوه له بلي څخه اثرات اخلي لګيا دي- کوم لفظ چي له بلي ژبي خپلي ژبي ته را داخل شي او خلک يې خپل کړي ، هغۀ په هره توګه د خپلي ژبي تورے ګڼل کيږي ولي چي په معنا يې خلک پوهيږي او په ژبه کي يې خپل ځاى موندلے وي- چونکي د ژبي ښکلا د لفظونو په نوښت ، ښايست او غوره ترتيب پوري اړه لري ځکه نوکه په يوۀ نوي توري يا لفظ تحرير غوره ښکاري او ښايست په مومي نو بيا دغه تورے پخپله په ژبه کي ځاى جوړوي- دهري ژبي مستقبل د هغې د ويونکو ، لوستونکو او ليکونکو په لاسونو کي وي- که څوک دا غواړي چي ژبه يې د ترقۍ پر

لاره روانه شي نو به د خپل نظر زاویه سموي او نيّت به پراخ ساتي- معقوليت ، فكر او استدلال ته به فوقيت وركوي- د هر غوره بدلون به هركلے كوي- د خوشحال بابا د معيار سره سم به د تفكر لاره خپَلوي- نو به يې ژبه پخپله د ترقۍ په خوا روانه دوانه وي- خوشحال بابا وايي[12]:

خلګ خوښ په خوب اودۀ وي دے په فكر
د پالنګ د پاسه خوب وي پرې محال
پټ په پټ وبله اوړي تر صباحه
د ښـۀ لفظ د ښـۀ مضمون په اتصال

راتلونكے وخت د هغو ژبو دے چې وكېبلري يې پېوسته د بدلون په حال كي وي او په ځمكه يې د خوښدو ژبو خواږۀ هم كرل كېداى شي- ولي چي په ساينسي اصطِلاح " كراس فرټيلايزېشن" د بهتر فصل ضمانت وركوي- په هره ژبه كي دا صلاحيت شته چي د ترقي سترمقام ته الوته وكړي- كه يوې خوا ته د ځينې خلګو نظر دا وي چي "سُوچه ژبه" هغه ژبه ده په كومه كي چي د بلي ژبي د لفظونو هيڅ يوځاى نۀ وي ، يوازي قبايلي رنګ پكښې ليدل كيږي او دنورو رنګونو پكښې هيڅ ګنجايش هم نۀ وي نو دا د منلو وړ نۀ ده- او كه بلي خواته هغه زلميان وي چي د نورو ژبو تر اثر لاندي مورنۍ ژبه ترې هېرېږي نو بيا دغي دواړي ډلي دخپلي ژبي پورَوړي دي- دغو دواړو ډلو لره د ژبپوهني په حساب سمه لاره د معقوليت او اعتدال ده چي

ژبه ښكلا په مومي او قامونه په جوړېږي- د تخليقي ژبي ښكلا ، خوند او درندتيا د دې د لفظونو په خاص ادا او د جُملو په ځانګړي تركيب پوري اړه لري نۀ چي يوازي په نوښتونو پوري- څوك چي په ژبه پوهـ نۀ وي ، د حمزه[13] بابا په نېز ژوند د لېوني په شان ورباندي تېرېږي ، ځكه خو وايي چي:

دا مي قسمت چي لېونے نۀ شومه
پوهـه خو شوم د لېونو په ژبه

## اخځليك


1- كريسټل ، ډېوېډ ، ’د كېمبريج د ژبو انسايكلوپيډيا ‘ ،
( The Cambridge Encyclopedia of Language)
كېمبريج يونيورسټۍ پرېس ۱۹۸ —

2- سويشر ،كلېريس ، The Beginning of Language:Opposing Viewpoints
يعني ’د ژبي ابتدا‘ ګرين هېون ، ۱۹۸۹

3- ډينين ، فرانسيس پي ، ’عمومي ژبپوهنه General Linguistics) ‘)
جارج ټاون يونيورسټۍ پرېس ، ۱۹۹۵

4- برليټز ، چارلس - ’مورنۍ ژبي(Native Tongues) ‘ ګروسېټ ۱۹۸۲ -
وائيډ ويو ۱۹۸۴ - د نړۍ د ۱۱۵۶ ژبو او ۵۰۰۰ لهجو پر حقا يقو
مشتمل كتاب

5- ساپير ، اېډورډ- Language: An Introduction to the Study of Speech
يعني ’ژبه : د ږغونو د علم يو تعارف‘ هاركوټ براس په ۱۹۲۱ كي چاپ
كړے ؤ او بيا هيومنيټيز په ۱۹۸۰ ببرته چاپ كړ-

6- ډنبر رابين ، (Grooming, Gossip, and the Evolution of Language)
'د ژبي وده ، ګپې او ارتقا' هاورډ يونيورستۍ پرېس ۱۹۹۸
7- زيار مجاور احمد ، پښتو او پښتانه دژبپوهني په رڼاکي ، )دانش( پېښور ، ۲۰۰۱
8 - دروېش درانی ، 'پښتو عروض' ، صحاف نشرياتي موسسه
کاسي روډ کوټه ، ۲۰۰۷
9 - سمر انسټيټوټ آف لينګويسټيکس ، انکارټا ايسايکلوپيډيا ،
Encarta Encyclopedia ، مائيکروسافټ کارپورېشن-
10- ويټجن ستين ، 'فلسفيانه جاج' ،(Tractatus Logico philosophicus)
چي اول روټلېج چاپ کړے ؤ او بيا يې په انګرېزي کي ترجمه بلېک وېل
د Philosophical Investigation تر عنوان لاندي چاپ کړے وه —
11- هال ، اېډورډ تي ، 'خا موشه ژبه (The Silent Language)' ډبل ډې ۱۹۷۳
او بيا ګرين ووډ ۱۹۸۰ (د بېلا بېلو ژبنيو ډلو کلتوري او ژبنے جاج)
12- خوشحال خان خټك 'د خوشحال خان خټك کليات' ، اسد دانش مطبعه ،
کلو پشته ملي مارکېټ ، کابل ، ۲۰۰۸
13- حمزه شينواري ، 'د حمزه شينواري کليات' غزلي ، يونيورستۍ بك اېجنسۍ ،
پېښور ، ۲۰۱۰ -

* * *

# تخلیقي ژبه

تر زوکړي وروسته ماشوم د ژبې د زدکړې تر بېلا بېلو مرحلو تېرېږي- خندا او ژړا یې ښایي چې له ازله د ځان سره راوړي وي خو بیا ټول عمر د ژبې پر لوړو او ځوړو خپل سفر جاري ساتي- پېل له وړو وړو لفظونو وکړي او بیا ورو ورو د ژبې تر تخلیقي حدونو ځان رسوي- مور یې وینو چې ماشومان اوّل اوّل واړهٔ واړهٔ لفظونه هم په مات مات انداز وایي خو بیا یې په هر څهٔ سر خلاص شي او و نورو ته لا هم ښووَني کوي- داسي برېښي چې انسانیت د ژبې په رڼا لار وړي او لفظونه د تفهیم د دنیا ستوري دي چې برېښي- لکه چې په ستورو اسمان ښایسته دے همدغه شان په لفظونو ژبه ښکلې ښکاري- ښکلا د تخلیق د دنیا محور دهٔ او دا په تخلیقي ژبه ممکنه ده چې لمن یې له رنګارنګ لفظونو او ترکیبونو ډکه وي-

یوه ژبه هم له لویه سره نهٔ تخلیقي وي او نهٔ غیر تخلیقي- دا د ژبې د وَیُونکو ، لیکونکو او لوستونکو په محنت پوري اړه لري چې خپله ژبه په کوم صف کي درَوي- هره ژبه تخلیقي ژبه ده که یې

چيري وَيونکي په خپل فکر ، احساس او ليك لوست ښايسته کړي- که ديوهٔ کس د ذهن پر اسمان د ښکلي خيال وريځ را ښکاره شي او دے يې د ښهٔ ليك په توګه پر کاغذ ونهٔ څخوي نو بيا ظاهره ده چي د ښهٔ فصل توقع هم نهٔ شي ترې کېدای- که د خيالونو او احساساتو ډك لاشعور را وَ ايشيږي او خوك د ژبي تش جام هم ترې ډك نهٔ کړي نو بيا ژبه کله تخليقي مقام ته رسېدای شي-

لکه چي مخکي يې ذکر وشو ، په ساينسي توګه ژبه يو ستر ذِهني صلاحيت دے چي پر عمومي سطحه په يادا ښت او فکر پوري اړه لري او ظاهره خبره ده چي يادا ښت د هغهٔ د تېري تجربي او تعليم سره هم تړاو لري- ژبه چونکي يوازي تر ويَلو ، اورېدلو ، ليکلو او لوستلو پوري محدوده نهٔ ده بلکي د خوبونو ، تصوّراتو او اوړدو خيالونو هر لړ په لفظونو ښايسته دے ، ځکه نو د ژبي بره سطحه تخليقي ده چي تړاو يې د يادا ښت سره سره د فکر او احساس سره هم دے- احساس د خارجي ماحول تر اثر لاندي راپاڅيږي او بيا د يادا ښت او تجربې پر بنسټ انساني فکري نظام ته د تخليق بلنه ورکوي- لکه چي په څرګندون نمبر ۲۰ کي ښکاري ، تخليق تر يوهٔ خاص احساس وروسته د انسان د تخيّل او تصوّر پر بنسټ کيږي- تعليم او تجربه يې د معيار سره تړاو لري- دغه تجربه د دهٔ په يادا ښت کي تر ډېره خوندي وي- په همدغو عواملو عامه ژبه هم تخليقي ژبه جوړيږي-




خرګندون نمبر ۲۰ د تخليقي ژبي لښت ليك

د دنيا د هري ژبي وَ يُونكي ، ليكونكي او لوستونكي د انسانانو په حېث يو رنګه ذهنونه لري ، يو قِسم خوبونه ويني او يو شانتي خيالونه يې دي- فرق يې تش دومره دے چي ځينو په پيوسته هلوځلو خپلي ژبي د كمال تر حده رسوَلي دي او ځينې لا تر اوسه د غفلت په خوب ويدهٔ پاته دي- كوم خلګ چي د دُنيا د بدلونونو څخه بې خبره پاته دي او خواوشا ته يې هيڅ پام نشته د

هغوی ژبي ښايي چي په مستقبل کي د رابطي ژبي هم پاته نۀ شي- ولي چي دا دنيا په ډېره تيزي سره بدليږي لګيا ده او لوی شمېر ژبي د بقا په هلو ځلو دي- کله چي په فرانس کي په شلمه پېړۍ کي د تخليقي کلتور ابتدا وشوه نو فلسفې هم د ساينسي استدلال په پرَته د دغه کلتور د يوې څانګي په توګه پر مختګ وکړ- تخليق کوونکو يې حقيقت ته تر فِکشن زيات اهميت ورکړ- د دوی ادب يا ليټريچر پر هغو کرښو روان شو چي ترې راوتلو پايلو به يې په عملي توګه امکان هم درلود- د دغه دور د يوۀ فلاسفر ماريس مرليو پونټي[1] قول دے چي:

"The world is not what I think, but what I live through"

معنا دا چي جهان هغه نۀ دے کوم چي زۀ يې فکر کوَم بلکي هغه دے په کوم کي چي زۀ اوسم-

د دۀ په فکر 'خيال' هماغه معقول ګڼل کېدای شي چي حقيقت ته نژدې وي- که څوك وايي چي دا ژبه خوږه ده او هغه ژبه زيږه ، نو د دې يو مطلب دے چي دلومړۍ ژبي وَيُونکو په شعوري زيار دخپلي ژبي تراخۀ مينځلي دي او د نورو ژبو خواږۀ يې هم په خپله ژبه راګډ کړي دي ، او د دوهمي ډلي ژبه تر اوسه لا په هماغه ځای پرته ده چرته چي وه- څۀ ليکوال ښايي په بله ژبه ليك ځکه کول غواړي چي مطالعه يې يوازي تر هماغې ژبي محدوده وي او مورنۍ ژبه په څۀ نه څۀ وجه ترې ګډه وډه شوې وي- که د چا خيال وي چي په مورنۍ ژبه کي يې لفظونه کم دي او د اظهار ضرورت نۀ پوره

کوي ، نو د دې دا مطلب هم کېدای شي چي په خپله ژبه کي يې کله دليك لوست کوښښ هم نهٔ وي کړے-

د نورو ژبو په شان پښتو هم بېله څهٔ شکه يوه تخليقي ژبه ده ولي چي دا د خاص سيمي د يوهٔ مُهم قام د اظهار ، ابلاغ او تحقيق ژوندۍ ژبه ده- دا يو قديم تاريخ لري او د نورو تخليقي ژبو په شان د زرګونو کلونو د يوهٔ بېل کلتور نماينده ژبه ده- دا ژوندۍ ژبه ځکه ګڼل کېږي چي د وخت سره بدلون پکښې راځي او د زمانې په ګام روانه اوسي- د قام تخليقي ميراث ، اخلاقي ارزښتونه ، کلتوري مېلانونه ، جمالياتي معيار او روحاني الوتني د ژبي سره تړاو لري او ژبه د خپل تهذيب نمايندګي کوي- ژبه د ټول قام د يګانګۍ مظهر وي او د قام شناخت په کيږي- د نورو ژبو سره سمه دا ژبه هم د نړۍ د لوی شمېر هېوادونو په پوهنتونونو کي د تعليم او تدريس ژبه ده- د پښتو شُعبه د آسيا ، يورپ او امريکا په سترو پوهنتونونو کي شتون لري او خپل واضح نصاب يې هم شته-

که څهٔ هم رسمونو ، رواجونو ، مسلکونو او نورو ډېرو غېر منطقي روَيو د دې سيمي د بېلا بېلو ژبو د تخليقي عمل رفتار سُست ساتلے دے ، خو دا هم يو حقيقت دے چي په تېرهٔ نيمه پېړۍ کي لوی شمېر معياري تخليقونه هم پکښې شوي دي- د اجتماعي لاشعور ريښې يې په تاريخ ، جغرافيه ، کلتور او تهذيب کي دي- ځکه نو اجتماعي علامتونه له همدغو څخه را ځېښي چي تخليقي عمل وده په کوي- د ژبي خوش قسمتي دا وي چي په ريښو کي يې عظيم

تاريخ ، واضح جغرافيه ، ښکلے کلتور او ستر تهذيب وي- اجتماعي علامتونه يې په همدغه حساب مزي ګنډل کيږي- د مثال په توګه په دې لاندي بند کي چي کوم علامتونه په کار راوستل شوي دي په هغو کي د قام د تاريخ ، جغرافيه او کلتور رنګ له ورا ښکاري:

چرته چي بازان په ځپو لوبي کړي
چرته چي زمريان ګرځي په غرونو کي
چرته چي همېش اوسي آ زاد خلګ
هغه زموږ ستروطن هغه زموږ مېنه ده

د دې سيمي تاريخ د مېړنو تاريخ دے او تاريخي علامتونه يې ژوندي دي ځکه نو د فارسي ، عربي ، هندي او اردو په شان پښتو هم يوه ژوندی ژبه ده او د پايېدو پوره پوره صلاحيت لري- زموږ تاريخ يوازي دباچاهانو تذکرې نه دي بلکي د نړۍ تر ټولو زوړ سماجي ، ثقافتي او تخليقي ميراث هم ګنډل کيږي- آزاد ليکوال په تخليقي عمل کي په خپله ژبه د ښکلاوو تشکيل او تعمير کوي- په بنسټ کي يې د خپل تاريخ ، جغرافيه ، کلتور او تهذيب مزي علامتونه په کار راولي- که نثر وي او که نظم ښايست يې په همدغو علامتونو پوري اړه لري- دا صحي ده چي يوې خواته څو کم عقلان په هر تخليق کي فحاشي او عرياني ويني او بلي خوا ته دمغربي ميډيا تر اثر لاندي د کلتور پر نامهٔ څو نور کم عقلان د خپلي ټولني سره لوبي کوي- د دغو دواړو ډلو

مرام د قام او ژبې پرمختګ نۀ دے بلکې خپلې خپلې اېجنډې يې په مخه راخستي دي- د هرې ژبې خپل جُدا او منفرد کلتور وي او دا د هغې د تخليقي تاريخ سره تړاو لري نۀ چې د ميډيا د ضرورتونو سره- د دې دا مطلب هم نۀ دے چې ژبه دې د تخليقي تاريخ په دايره کې شکېل کړله شي بلکې موخه دا ده چې کوم څيز ورسره سمون لري هغه دې پکښې ځاى شي او چې يې نۀ لري په جبر دې نۀ پکښې څيخل کيږي-

د نوښتونو په نامۀ کله کله داسې ناشولتې هم مخې ته راشي چې لوستونکے پرې حېران شي- د پرَدۍ ژبې زياتره علامتونه او ترکيبونه په تحرير کې پرَدي پرَدي ښکاري ، ځکه نو د مينې د اسلوب تعيُن يوازې په خپله ژبه کې ممکن دے- خوبونه ځکه يوازې پخپله ژبه کې ليدل کيږي چې د لاشعور په بنسټ کې د خپلو قريبانو او عزيزانو د خويونو (رَويو) زياته برخه وي- کوم ماشوم چې له خپلې مور نه "الاهو لولو خوبانۀ راشه" اورېدلې وي هغه په همدغه الاهو ويديږي- يو لوستونکے چې پرکوم تحرير خوند اخستاى شي هغه به لازمې د دۀ د کلتور سره سمون لري ، کنې د ' نوي' او'پرَدي' تر منځ به ښايي څۀ ډېر توپير پاته نۀ شي- پر خپله ژبه مَيئن ليکوال دا وېره لري چې که په ټينګه د ليك لوست هلې ځلې ونۀ شي نو ورو ورو به خپله ژبه د خلګو هېره شي او ځاى به يې نورې علمې ژبې ونيسي- ولې چې خلګ په خپلو بچيانو په هرحال اعلیٰ تعليم کول غواړي او دغه که په خپله ژبه کې نۀ وي نو به يې په منطقي توګه په بله ژبه کوي- په دغه حقله درويش[2] وايي :

راسره وي تل دا وېره
هسي نۀ تۀ مي شې هېره
پخوا هم په دې جهان کي
مینه وه خو موړ کړه ډېره

د عربي ، فارسي او هندي په شان پښتو هم له پخوا څخه يوه تخليقي ژبه را روانه ده- تر تحرير لمخه هم په دې کي د متلونو ، غاړو ، نارو ، لنډيّو ، داستانونو ، نکلونو ، کيسيّو او سندرو ډېره لويه زخيره موجوده وه- بيا د فارسي او عربي ژبو څۀ نۀ څۀ اثرات ورباندي وشول او نوي اصناف هم ورو ورو پکښې را داخل شول- کله چي انګرېزي ژبه پر عالمي سطح د تعليم ژبه شوه نو د نورو ژبو په شان دې هم څۀ نۀ څۀ اثرات ترې واخستل ، خو اوس هم دا فقط هغه اثرات قبلوي کومو ته چي اړتيا لري- دا ځکه چي مغربي قامونه په ساينس او ټېکنالوژي کي تر نورو قامونو ډېر مخته لاړل او په دغو علومو کي د زدکړي دپاره د انګرېزي ژبي څخه استفاده ضروري شوه-

تخليقي ژبه د قام تعليمي نظام لره هم لازمي ده ولي چي تعليمي نظام يوې خواته د قام د آ رزوګانو ترجمان وي او بلي خوا ته د کلتوري ارزښتونو مظهر هم وي- که يوې خوا ته په سکولونو کي د

تعليم ژبه انګرېزي وي ، بلي خوا ته په مدرسو کي تعليم په عربي ژبه وي او درېيمي خوا ته دفتري ژبه هم بله وي نو بيا پر مورنۍ ژبه دا الزام د منلو وړ نۀ دے چي دا تخليقي ژبه نۀ ده او يا د کاظم خان شېدا په قول بې نظمه بې نظامه ده[3] - د دغو درو واړو طبقو ذهني او جذباتي سطحې چونکي بېلي دي ځکه يې په فکرونو کي توپير منطقي دے او همدغه يې ترمنځ شك پېدا کوي او قامي وحدت ته يې زيان رسوي- هسي هم موږ اوس د منافقت په دنيا کي اوسو ، نۀ مو قول قول دے نۀ تخليق تخليق- د ژبي او د زړۀ لاري مو جدا جدا دي- احساسات مو دقلم او عمل سره سمون نۀ لري- دپُولي يوې خواته مو خبره يوه ده او بلي خواته بله- يوې خواته تعليم بد بولو بلي خواته خپل بچيان د تعليم دپاره نورو هېوادونو ته لېږل غواړو- دبل بچيان د جنګ اور ته ور غورځوو او خپل بچيان ترې لري ساتل غوا ړو- يو عجب غوندي منطق دے ، عجبه فلسفه ده ، نۀ يې هدف شته نۀ موخه- که څۀ هم دغه حالات د پېوسته بهرني مداخلتونو او بېلا بېلو دسيسو په وجه دي خو که مورنۍژبه د دفتري ژبي سره سره د تعليم ، تدريس او تخليق ژبه هم شي نو بيا يو قام هم د تعليم او ترقۍ په منده کي شاته نۀ شي پاتېداى- د منافقت په دغه دنيا کي هم د نېك مرغۍ زېرے دادے چي ورو ورو په خلګو کي د خپل تشخص شعور را وپاڅېد ، او دوى اوس په ټينګه د پرَدو د بې شمېره

دسیسو مخنیوے کوي- که په راتلونکي وخت کي په دې سیمه کي د سکول ، مدرسې او دفتر درو واړو ژبه مورنۍ ژبه شي او یا پکښې مورنۍ ژبه هم شامله شي نو به د دغو درو واړو طبقو ذهني او جذباتي سطحې سره نژدې شي ، دنظر زاویه به یې سمه شي او په فکرونو کي کرَلے دغه توپیر به یې له منځه ولاړ شي- هره ژبه یوه علمي او تخلیقي ژبه ده- پرمختګ یې تر ډېره حده د وَیونکو ، لوستونکو او لیکونکو په شعوري هلوځلو پوري اړه لري- همدغه شعوري هلي ځلي یې د بقا او قامي وحدت ضمانت ورکولای شي-

د قامونو لیټرېچر[4] په دوو بېلا بېلو توکو کښې لیدل کیږي- یو توکے یې ژبنے لیټرېچر دے چي خلګ یې په یاد ساتي او له یوهٔ نسل څخه وبل نسل ته ورپاتیږي او بل توکے لیکلے لیټرېچر دے- ژبنے لیټرېچر یې کړۍ په کړۍ له پېړیو راروانه یوه سلسله ده چي دغه زوړ لیټرېچر تر نوو نسلونو پوري رارسوي- نکلونه ، کیسۍ ، داستانونه ، غاړي ، ناري ، لنډۍ او نور ډېر څهٔ ژبنے لیټرېچر دے چي په هره سیمه کښې لا تر اوسه شتون لري- د لیټرېچر دغه بل توکے یعني لیکلے لیټرېچر له بده مرغه د دې سیمي په یو شمېر ژبو کښې ببخي کم دے- د دې سیمي قامونه هرڅهٔ ویَلای شي او ډېرڅهٔ وایي هم ، د دښمن ځواب کولای شي او دوست ته ښهٔ راغلے هم وایي ، خو نهٔ څهٔ لیکي او نهٔ یې د لوست فکر کوي- د قامونو د

پرمختګ يوازينۍ لاره د ليك او لوست ده- ليكنه آسانه نۀ ده او تر ليكلو لمخه لوستل بېخي لازمي څيز دے ، ځكه نو د ترقۍ لاره د تعليم ده چي هم لوست دے اوهم ليك- كه څۀ هم پښتو ژبه خپل زوړ فِكشن لري او دا د ډېرو نورو ژبو په شان له اوّله سره په څۀ ليكلي شكل كي نۀ ۇ بلكي يو له بله اوربېدل كېدۀ- داشان له يوۀ پېر څخه بل پېر ته ، دڅۀ نۀ څۀ بدلون سره منتقل كيږي راروان دے- اوس لا هم د دې سيمي زياتره اولسي ليټرېچر په ليكلي شكل كي نۀ دے بلكي په هماغه زاړۀ انداز د غرنو، رېګونو او زنګلونو د اوسېدونكو په زړونو كي خوندي دے- دغه اولسي ادب كه د ادب په اوسنۍ ګچه هر څومره دے خو د وَړو قامونو د پېژندګلوۍ او د ټولني د جوړښت پُوره پُوره احاطه كوي- نن هم دغه پخوانے ژبَنے ليټرېچر د خلګو په زړونو كي خوندي دے او په زړۀ پوري موسيقي يې نۀ يوازي ژوندے دے بلكي پر مجموعي سطح تر هر جديد موسيقي ډېر خوښيږي-

د نړۍ نورو قامونو ورو ورو خپل ټول ليټريچر د زباني شكل څخه و ليكلي صورت ته راواړاۀ خو د دې سيمي وَړو وَړو قامونو ته لا دا كار اوس هم ګوري- دنورو ژونديو قامونو په شان د دوی ليكلي آثار هم خپل تاريخ ، مذهب ، قوميت ، دود او مېړانه ستايي- په وَړو ژبو كي دغه كم كم ليك هم د خپل خپل قام ځانګړے غږ دے چي د

نړۍ په بېلا بېلو بې شمېره آوازونو کي د دوی تشخص څرګندوي- د دوی ليکلے ليټرېچر زياتره د شاعرۍ په شکل کي دے- نثر خال خال پکښې ښکاري- زوړ تاريخ يې نورو قامونو ليکلے دے اومذهبي ليکني يې هم زياتره د بهرَنيو قامونو تر اثر لاندي شوي دي- سياسي ليکني يې ځکه مُهمي دي چي د سياست سره سره د ټولني د بېلا بېلو شخړو عکاسي هم پکښې شوې ده- د صحافت تاريخ يې ډېر اوږد نهٔ دے بلکي صحافت د دې سيمي د سياست همزولے ښکاري ، ځکه نو زياتره سياسي ليکني هم په اصل کي صحافت بلل کيږي-

د سيمي د وَړو وَړو ژبو د پرمختګ سفر که څهٔ هم د نړۍ د نورو قامونو په ګام نهٔ دے خو بيا هم نړۍ ورته په درانهٔ نظر ګوري- د پښتو ژبي دلُغاتو يا ډکشنرۍ يا قاموس ضرورت په۱۸۵۶کښې راورټي[5] محسوس کړے ؤ او په کال ۱۸۶۰ کي يې يوه ډکشنري چاپ کړې وه- وروسته خو بيا نور لغات هم پکښې وليکل شول او د ژبي لمن په پراخه شوه- د ژبي د پرمختګ د پاره دا لازمي ګڼل کيږي چي وګړي به يې په شعوري توګه ليك او لوست پکښې کوي- ليکنه ځکه پکښې ضروري ده چي يوې خواته پر عالمي سطحه د قام پېژندګلوي په کيږي او بلي خوا ته د نوي نسل رهنمايي هم کوي- په خپله مورنۍ ژبه تعليم ، تدريس او تخليق تر نورو ژبو ډېر په اسانۍ سره کېدلای شي- دقام ترقي د ژبي سره تړلې ده او د ژبي پرمختګ د قام د

وکړو په معياري څېړنو او تخليقونو پوري اړه لري- په تخليقي ژبه د تاريخ ، کلتور ، آزادۍ ، وطنيّت ، سياست ، نېشنليزم ، رومنټيزم ، ريئليزم ، فطرت پرستي ، حقيقت پرستي ، جديديت ، نفسياتي حقيقت پسندۍ ، سماجي حقيقت پسندۍ بشپړ اظهار کېداى شي او د تخليقي تندي تسکين هم په کيږي - څکه خو احمد شاه بابا[6] وايي:

که د زړه زخم لرې دارو طلب کړه

داحمد ويَل دخوږو زړومرهم دے

## اخځليك


1- ماريس مرليو پونټي ، ’ د احساس کړۀ وړۀ ‘
(The phenomenology of Perception )
روټلېج ( پيپر بېك ) ۱۹۴۵ -

2- دروېش درانی ، ’ کر د ګلو ‘ ،
صحاف نشرياتي موسسه کاسي روډ ،
کوټه ، ۲۰۰۷

3- کا ظم خان شېدا ، “د پښتو د شعر حسب حال” ’ د کاظم خان شېدا دېوان
تدوين د حنيف خليل ،
دانش خپرندويه ټولنه ،
پېښور ۲۰۰۵

-4 کا مري ، برنارډ ، 'د نړۍ لويي ژبې ' ،

(The World's Major Languages)

آکسفورډ يونيورستۍ پرېس ۱۹۹۰

-5 کپټن ايچ جي راورټي ،

'د پښتو ، پشتو يا د اافغانانو د ژبې ډيکشنري '

A Dictionary of the Pukhto, Pushto, or language of the Afghans

لانګ مېن ، ګرين ، لندن ۱۸۶۰ اوبيا سنګ ميل پبليکاشنز ،

۲۵ شا هراه پاکستان لور مال لاهور ۲۰۰۱

-6 احمد شاه بابا ، 'دلوی احمد شاه بابا دېوان'

دېوانِ هرا تر تيب د معصوم هوتك ،

صحاف نشرياتي موسسه ،

کاسي روډ کوټه ، ۲۰۰۹


* * *

# تخليقي تنــده

هر تخليق کوونکے چي کله ماشوم وي نو يې مور او خوېندي په ساده غوندي تخليقاتو ويدَوي- ښايي چي "الاهو لولو خوبانه راشه" هغه لومړۍ نغمه وي چي ددهٔ په لاشعور کي ځای مومي- کله چي ورو ورو هلك يا انجلۍ شي نو بيا د کهول د ښلا ښېلو غړو څخه سندري ، نکلونه او کيسۍ اوري- چي لږ نور غټ شي نو يې د ليك لوست په کار اماده کړي خو چي کله ځهٔ زده کړي نو بيا مضمونونه پرې ليکي- همدغه شان په تخليقي کار کي لومړے ځای د شاعرۍ دے- تخليق کوونکے تر ټولو لمخه شاعري پېل کړي[1] بيا افسانه ليکي وروسته نو بيا د ناول ډرامې او عِلمي مضمونونو پخوا هڅه وکړي- ما هم پېل له شاعرۍ څخه کړے ؤ- ورو ورو راته احساس وشو چي قافيئې او رديفونه ما له ځان سره دلي دوري وړي خو زياتره د اوږدو خيالونو لړ راوشلوي ، دانه دانه يې کړي- ددوی په وجه به زياتره ما خپل خيالونو په لفظونو کي نهٔ شوای را اړَولای ، نهٔ به مي په جملو پېيَلای

شواى- بلکي دوى به زۀ له ځان سره يوړم او چرته به يې په بله شېله روان کړم- اوس چي زۀ ورته ګورم نو د شعور او لاشعور توپير راته ګران نۀ ښکاري او د دغو دواړو په بېلا بېلو پړاوونو مي سر هم خلاصيږي- د تخليق په مېکېنيزم چي تر کومه حده زۀ پوهېږم هغۀ ستاسو په وړاندي ږدم-

دنړۍ د زوکړي او دانسان دتخليق په اړه خوځۀ نۀ څۀ بحث موږ په 'پښتانۀ د تهذيب په ځپوکي' کړے ؤ[2]- بيا 'د فکرتال[3] کي د کس او سړي تر منځ توپيري عوامل هم تر بحث لاندي راغلي وو- د انسانيت تر معراجه د کس د اوږدۀ سفر په حقله تر ځان پېژندنه وروسته دا تفصيل ښوول شوے ؤ چي دآزادي ارادې ، غوره انتخاب او تخليقي عمل په وجه انسان له بشره بېل ګڼل کيږي- دابحث هم تر ډېره حده په نتيجه رسوَل شوے ؤ چي څۀ رنګه يو عام کس د تخليقي صلاحيّت په زور د سړيتوب تر سترمقام پوري ځان رسولاى شي- دلته اوس سوال دا دے چي تخليق څۀ دے ؟ او تخليقي تنده په کومو عواملو پوري اړه لري ؟

لکه چي په دې لاندي ځرګندون نمبر۲۱ کي يې وضاحت شوے دے ، تخليق د تخليق کوونکي په داخلي تخليقي تنده پوري اړه لري چي يوداخلي احساس دے او بېلا بېل محرکات يې دي-دغه تخليقي تنده يو کس په تخليق خوښ او آماده کاندي- لکه چي وړاندي يې د انساني ذهن د بېلا بېلو صلاحيّتونو په اړه ذکر شوے ؤ ، تخليق د انساني ذهن له هغو سترو صلاحيتونو څخه يو دے چي انسان له نورو ټولو مخلوقاتو څخه افضل په ګڼل کيږي- يوې خوا ته




ځرګندون نمبر ۲۱ دتخليق او تخليقي عواملو لښت ليك

انسان په همدغه تخليقي قوت د خپلو داخلي غميزو اظهار كوي او بلي خوا ته دخپلي ټولني د درد او ښېګړي د احساس د اظهار هلي ځلي هم په دغه تخليقي قوت جاري ساتي- كله په لاشعوري توګه د ذاتي الميو ورباندي غلبه وي او كله يې بيا د خارجي دنيا شعور دومره پرېشان كاندي چي څهٔ نهٔ څهٔ ترې وشي- كله يې په تخليق كي ذاتي غميزي زياتي وي او كله بيا د ټولني درد دومره ورباندي غالب وي چي ځان يې پرې هېر وي- كله كله داسي هم وي چي داخلي او خارجي عناصر دواړه سره ګډ وډ شي او د تخليق يو نوے مركب ترې جوړ شي- د انساني ذهن يو خاصيت دا دے چي په خپل فطري ماحول كله هم قناعت نه شي كولاي ، بلكي يوې داسي تندي په مخه اخستے وي چي د تخليقي صحرا په سراب پسې مسلسل روان دوان وي- دغه راز يې مخه د نوو نوو تخليقاتو په خوا شي خو تنده يې بيا هم په هيڅ توګه نهٔ ماتيږي- د تخليق كوونكي نفسياتي جوړښت څهٔ داسي وي چي د ماحول تر اثراتو لاندي يې هر كله په اضطراب كي ساتي او همدغه كېفيت يې په تخليق آماده كاندي- ويښ انسان هركله د خپلو تهذيبي او كلتوري ارزښتونو تر اثراتو لاندي د ټولني درد محسوسَوی اوخپل دغه احساس يې و تخليق ته هم اړ كړي- په اوسني دور كي د تخليق بېلا بېل اړخونه د انساني نفسياتو پر بنسټ څرګنديږي- تخليقي نفسيات يوه نوې علمي شعبه ده او دا د هغو پېچلو سوالونو ځوابونه لټوي كوم چي په انساني ذهن كي د تخليقي نظام په اړه له ډېره وخته را پاڅيږي- پر شعور ، لاشعور[4] او اجتماعي

لاشعور[5] غوندي نفسياتي موضوعاتو خو موږ څه نۀ څه بحث مخکي وکړ، اوس به يې پاته برخه هم وڅېړو- تخليق په نفسياتي توګه تر ډېره حده دفرد په داخلي انفراديت پوري اړه لري، خو اثرات يې اجتماعي دي- يو کس تخليق يوازي د خپل ځان د داخلي تسکين دپاره نۀ کوي بلکي دا د تخليق کوونکي دخپل قام، خپل وطن او خپلي ټولني سره د ټينګ نفسياتي تړاؤ مظهر هم دے- داسي برېښي چي شاعر، اديب او فنکار د خپل دغه نفسياتي تړاؤ په وجه په تخليق کوولو خوښ وي- تخليق خواشيني لري کوي او په داخل کي يو داسي مسرت راپاڅوي چي تخليق کوونکے هر وخت په تخليق آماده کاندي- د تخليق په خوا د ذهن مېلان هلته زياتيږي کله چي انسان اوزګار وي- مصروفه کسان کم کم د تخليق په خوا هڅه کوي-

تخليق د انسان د نوو نوو خيالونو او تصوراتو هغه ستر صلاحيت ته ويَل کيږي چي دے يې د نورو کسانو څخه په بېل انداز وړاندي کوي- دا د ډېر مشقت کار دے چي په ادب، آرټ، موسيقي او تعميراتو کښې ليدل کيږي- دا څلور واړه يو له بله سره ټينګ تړاو لري- خلګ په عمومي توګه دا وايي چي موسيقي د روح غِذا ده او نامتو جرمن فلاسفر فرېډرك شېلينګ[6] به دا ويَل چي:

"Architecture is frozen Music"

يعني دتعميرفن منجمِد موسيقي دے- لکه چي مخکي يې ذکر وشو د تخليق تړاو د ادراك سره هم دے چي زياته برخه يې پر ياداښت مشتمله ده- په نفسياتو کي ادراك لره د کوګنيشن اصطلاح په کار

راوسته کيږي- کوګنيټيو سائيکالوژي[7] د انساني نفسياتو هغه څانګه ده کومه چي د يادابښت تر بشپړ ذهني نظام لاندي د تخليق د مېکېنيزم وضاحت هم کوي- د يوې پېښي تر احساس وروسته د انسان توَجه ، خيال ، يادابښت ، ګمان ، وسواس ، او پوهه ټول سره را وپړکيږي او يو دا سي تخليقي عمل پېل کړي چي تر دې لمخه يې تخليق کوونکي ته پخپله هم هيڅ اندازه نۀ وي- ځکه نو دا ويَل صحي ګڼم چي تخليق تر خپلو بېلا بېلو جُزونو ستر' کل' دے ولي چي دا داحساس ، خيال ، توجه ، يادابښت ، ګمان ، وسواس او پوهي مجموعه نۀ ده بلکي يو نوے څيز دے چي اثر يې د دغو ټولو تر مجموعي اثر زيات او ستر ګڼل کيږي- د تخليقي عمل او بېلا بېلو تخليقي مُحرکاتو په حقله به په راتلونکي څپرکي کښې بحث وکړو خو د تخليقي عمل په اړه دلته هم څه نۀ څه ذکر ضروري ګڼم- ولي چي ادبي تخليقونه لکه غزل ، نظم ، افسانه ، ناول ، مکالمه او ډرامه په هره ټولنه کي زياتوکم هره روځ ليکل کيږي ، ورسره ورسره په مصوّري ، مجسمه سازي ، تعميراتو او نورو فنونو کي هم تخليقي عمل جاري وي-

تخليقي عمل د وخت په څپو کي همېشه روان دوان وي- په تواتر سره مخ په وړاندي ځي او نوي نوي تخليقات په کيږي- دا يوازي تر ادب ، آرټ ، موسيقي او تعميراتو پوري محدوده نۀ دے بلکي جديد سائنس او ټېکنالوژي هم د انسان د تخليقي قوت پر بنسټ ولاړ دي- د هر داسي نوي څيز جوړښت "تخليق" دے چي تر دې

لمخه يې شتون نۀ وي- زموږ عقيده دا ده چي دُنيا له اوله سره نۀ وه بلکي خدای يې تخليق وکړ ځکه نو اوس شته- بيا د انسان د تخليق په اړه هم زموږ عقيده دا ده چي تر آدم لمخه انسان نۀ ؤ ، وروسته يې خدای تخليق وکړ ځکه نو اوس موږ موجود يو- چونکي انسان خدای پر خپل فطرت جوړ کړے دے ځکه يې د نوو نوو ځيزونو د جوړولو قوت هم ورکړے دے- انسان د دنيا په وَدانيو کي يو داسي عمارت جوړولای شي چي مثال يې تر دې لمخه وجود نۀ لري- لکه په هند کي تاج محل يو داسي عمارت دے چي په نړۍ کي يې اوس هم سارے نشته- کومي نغمې چي اسلافو په تېر محال کي تخليق کړي وې اوس هماغه شان خپل بېل وجود لري او خلګ يې خوښوي- په زاړۀ ادب کي د رحمان بابا د تخليقاتو خپل رنګ دے او د خوشحال بابا خپل بېل انداز دے چي تر دې لمخه يې مثال نشته- تخليقي عمل څۀ انتها نۀ لري او نۀ يې د څۀ آخري منزل تعيُن کېدلای شي ، ځکه خو جرمن فلاسفر هېګل[8] وايي:

"The Finite has no Genuine Being"

معنا دا چي د انتها څۀ حقيقي وجود نشته- تخليقي عمل به همدا رنګه جاري وي او نوي نوي پړاوونه به يې مخته راځي-

کۀ څۀ هم د ادب او تخليق تاريخ د انسان تر تاريخ کشر دے خو دا هم حقيقت دے چي تخليق هغه ارزښت دے چي انسان ته تر نورو مخلوقاتو فوقيت وربخښي- ټپې ، غاړي ، ناري ، کيسۍ او داستانونو له پېړيّو راروان تخليقي اصناف دي او عوامل يې

له هماغه وخته تر بحث لاندي دي- تر ابراهيمي مذهبونو لمخه په دې سيمه کي د خلګو دا ګمان ؤ چي د تخليق خدايګوتي انسان په تخليق کولو آماده کاندي- او کله چي له دوی څخه د يوۀ صنف خدای ګوتے پر يوۀ خاص کس مهربان شي نو په هغۀ کي يو بېل تخليقي قوت را پېدا کړي او د تخليق په خوا يې مخه شي- دا شان دے له عامو خلګو څخه بېل کړي او د تخليق په قوت يې د شهرت ، عزت او عظمت تر منزلونو ورسوي-

په ادب ، فن او تعمير کي د تخليق اصطلاح له پېړيو را روانه ده- ادبي تخليق يو مشکل تَخيّلاتي عمل دے چي اديب د نوو نوو نظمونو ، غزلونو ، افسانو او ناولانو په تخليق خوښ کاندي- دا د هر چا د وس کار نۀ دے چي معياري تخليق وکړي او نۀ هر څوك يوازي په شعوري هلو ځلو اعلیٰ تخليق کولای شي- د تخليق تنده خپل بېلا بېل داخلي او خاريجي محرکات لري د کومو په نتيجه کي چي تخليق کوونکے په دغه ګران کار آماده وي- د تخليق ټينګ تړاو دتخليق کوونکي د داخلي مېلان سره سره د ټولني ، کلتور ، وطن او تهذيب سره هم دے- دغه تړاو پر هغو جذبو ولاړ دے چي نفسياتي ريښې يې د خپلي ځمکي تر شکمه رسېدلي وي- د وطن مينه انسان د ځان او مال په قربانۍ خوښ کاندي- خپله ځمکه د مور په شان محترمه ده او دمورنۍ ژبي سره نفسياتي تړاو خلګ په تخليق آماده ساتي- تخليق کوونکے د ژبي حفاظت هغومره په ښه توګه تر سره کوي لکه چي يو عسکر د وطن حفاظت کوي-

که څۀ هم په ادبي حلقو کې تخليق له ډېر پخوا څخه تر بحث لاندي دے او د بېلا بېلو ادب پوهانو په نظر يې محرکات هم جدا جدا دي خو زياترو تر څۀ خاص ذهني کېفيت لاندي د تخليق کوونکي تخليقي تنده د تخليق اصل موجب ګڼلې ده- د تېر مهال زياترو ادب پوهانو به په همدغه داخلي ذهني کېفيت د عشق ، عقيدت ، ميني ، خيال ، جذبې او جنون ټولو وضاحت کاؤ- لکه چي په ځرګندون نمبر ۲۲ کي ښکاري ، د اديب پر داخلي جوړښت او د دۀ




ځرګندون نمبر ۲۲ تخليق د اديب په نفسياتي جوړښت ، حياتياتي ساخت او سماجي ارزښتونو پوري اړه لري-

پر تخليق باندي د نفسياتو، حياتياتو او سماجياتو بېلا بېل اثرات کيږي- په سائنسي توګه چونکي اديب هم د محقق او نقاد په شان دټولني يو فرد دے او په دغه حېث يې نو داخلي کېفيت هم په نفسياتي جوړښت، حياتياتي ساخت او سماجي ارزښتونو پوري اړه لري- د بېلګې په توګه، په حياتياتي لحاظ دنارينه جسم له زنانه وجود څخه بېل دے- د دواړو دبدن داخلي جوړښت يو رنګه نۀ دے ځکه يې نو په ادبي تخليقاتو کي هم حياتياتي توپير ليدل کيږي- همدغه رنګه د اديب داخلي نفسياتي جوړښت په ټولنه کي د بېلا بېلو سماجي رشتو څخه اثر اخلي- د فرد په حېث دکچنيوالي راهيسي هر اديب تر بېلا بېلو حياتياتي، نفسياتي او سماجي بدلونونو تېرېږي او همدغه يې د اجتماعي شعور په پخوالي کي برخه اخلي- په جديد دور کي د لاشعور، اجتماعي لاشعور او تخليقي سانچو په ذريعه د تخليق او تخليقي عمل منطقي وضاحت کول ممکن شو- جديد نفسيات اوس د تخليق کوونکي د خاص ذهني کېفيت وضاحت په آساني کولای شي او دا هم ښئي چي تخليق څنګه د انساني لاشعور تسکين کوي- نفسياتي مطالعه دا څرګندوي چي د تخليق ابتدا که څۀ هم په لاشعور کي کيږي خو د تخليق کوونکي د خپل تنقيدي شعور تر اثر لاندي وده کوي- تخليق د اِرادې او انتخاب په شان يو آزاد انفرادي انساني ارزښت خودے، مګر د تخليق کوونکي خپل تنقيدي شعور هم برخه پکښې لري ځکه نو د ټولني، کلتور او تهذيب له خارجي اثراتو څخه لري نۀ شي پاته کېدای-

د تخليق او تخليق کوونکي تر بحث وروسته اوس سوال دا دے چي تخليقکار تخليق څله کوي؟ آيا دا يوازي د دهٔ د خپل داخلي تسکين د پاره دے او که يې نور مقصد هم شته- په ظاهره خو په تخليق ، د انتشار په حالت کي تر ډېره حده د تخليق کوونکي داخلي تسکين کيږي- دا د دهٔ داخلي خواشيني لري کوي ، مينه يې زياتوي ، اطمينان ته يې بلنه ورکوي اوپه ژوند کي يې خوند پېدا کوي- د تخليقاتو اجتماعي اثرات ښايي چي هر کله دومره مثبت او متوازن نهٔ وي لکه چي يې موږ ګُمان کوو- دا کله کله انتشار نور هم زيات کړي او خلګ د پرېشانۍ سره مخامخ کړي- همدغه وجه ده چي په ادب کي د تنقيد خپل يو اوچت مقام دے او تخليق کوونکے زياتره پرخپل تخليق وتنقيد اورېدلو ته تيار وي او ځغمي يې هم- د تخليق په تناظر کي د تنقيد د پاره د علم سره سره آزاد فکر ، ديانت او انصاف ضروري ګڼل کيږي- ولي چي تنقيد هلته مثبت او متوازن ګڼل کيږي چرته چي د اجتماعي رَويو د ادراك سره سره دميزان تقدس هم پکښې وساتل شي-

دا صحي ده چي تخليق د تخليق کوونکي په داخل کي يو داسي مسرت راپاځوي چي دے په دغه مشکل کار هم آماده کاندي ، خو د هر چا سره داسي نهٔ وي- يوه غميزه د ټولني پر لکونو او کروړونو خلګو تېره شي مګر دوه يا درې کسان په دې آماده کاندي چي نظم ، يا افسانه او يا ناول ورباندي وليکي ، پر دغو نورو ټولو خلګو د باد د

يوې څپې غوندي تېره شي او هيره کړل شي- دغه توپير د انسان په داخلي نفسياتي جوړښت پوري اړه لري ، په زياته بيا د دهٔ په لاشعور پوري-

تر څو پوري چي د تخليق دمعيار تړاو دے نو دا په ډېرو بېلا بېلو عواملو پوري اړه لري[9]- ښکلا او مينه د تخليق مُهم موضوعات دي خو زهٔ پراخ نيت ، پراخه تجربه ، عميق احساس او ستر فکر د معياري تخليق دپاره لازمي عناصر گڼم- ورسره ورسره په ادبي تخليق کي د ښکلا ، ميني ، خيال ، جذبې ، لے ، علامت ، نظر او نظريئې خپل خپل اهميت هم منم ، خو دغه واړه د تخليق معيار لره لازمي نهٔ بولم- زهٔ ښکلا تر گل زيات حقيقي څيز ځکه گڼم چي دا يو داسي احساس دے چي په ظاهره څهٔ منطقي وجود نه لري خو په ذهن کي تر ډېره ژوندے پاته کيږي او څيزونه د هغو د نقصان او فايدې څخه ماورا ښکلي په ښکاري- دا يو داسي بې غرضه غوندي مُسرت راپاڅوي چي روح په معطر شي- زهٔ حسن لره د گل يا د سپوږمۍ استعاره ضروري نهٔ گڼم ولي چي د حسن اظهار نوري هم ډېري لاري لري- بې ځايه استعارې او علامتونه عبارت مشکل کړي خو حسن او خوند ترې وتښتوي- ساده اسانه او په زړهٔ پوري عبارت مي خوښ دے ، که په نثر کي وي او که په شاعري کي- زهٔ په دې نهٔ پوهېږم چي يو څيز څله ښکلے او حسين وي خو دا راته پته ده چي په زړونوکي دښايست معيار جُدا جُدا دے- دمغرب دخلکو په نظر حسن دخهٔ خاص توازن نوم دے چي کله په قدرتي شباب او کله په مصنوعي سينگار

کي ليدل کيږي- په دې سيمه کي ښايست د هغه تناسب نوم دے چي کله په عظمت او طاقت کي ليدل کيږي او کله بياپه څۀ خاص ترتيب پيئلي بېلا بېل نقوش ، په زړه پوري او ښايسته ښکاري- همدغه شان افريکايان د حُسن خپل بېل معيار لري- پنډ شونډان ، غټې سترګي او پراخ تندے د دوی په نېز ښايست دے- په هر حال حُسن يو ښکلے احساس دے چي په اصل کي د کتونکي د نظر په زاويه پوري اړه لري نۀ چي په عقلي دليلونو- فلسفيانه تناظر يې دا دے چي حُسن په يوۀ مربوط 'کل' کي په څۀ خاص تناسب د بېلا بېلو اجزا متوازن فطري ترتيب دے- د اديب په تخليق کي حُسن شته او که نۀ ، دا ستاسو د نظر په زاويه پوري اړه لري خو دے چي کوم څۀ احساسوي ستاسو په وړاندي يې ږدي-

د تخليق په دنيا کي مينه تر ښکلا هم لوی حقيقت منل کيږي ، ولي چي د انسان په وجود کي دميني معنوي ارزښت تر ښکلا مزے دے- په لا شعوري توګه د ښکلا حېثيت ترمينه په تول کم ښکاري- ښکلا ميني ته تر ډېره حده سطحي غوندي ښيز معلوميږي ولي چي مينه په انساني احساساتو کي تر ټولو په زړه پوري احساس دے- مينه د شاعرۍ ، افسانو ، ناولانو او ډرامو په ګډون د هر ادب روح ده- که څۀ هم مينه په هره سينه کي ځپې وهي خو سرچينه يې په هرحال انساني تخليقي نفسيات دي- که يو کس له بل سره مينه کوي نو آيا وجه يې يوازي دا ده چي ښايست پکښيويني ؟ که داسي ده نو بيا خو مطلب داسو چي مينه له حُسن څخه پېدا کيږي يا بيا حسن مينه زېږَوي- په دغه صورت کي سوال دا راپاڅيږي چي چيري

مينه پخپله خو د ښايست موجب نۀ ده؟ ولي چي د يوۀ کس تر سترګو ډېر ښايسته هم د بل په نېز د هغومري ميني وړ نۀ وي لکه چي يې هغه کس احساسوي- ځکه نو د ميني وضاحت يوازي د فرائېډ د تناسل په حياتياتي نظريه نۀ شي کېدای بلکي د تخليقي نفسياتو ژوره مطالعه غواړي-

موږ خيال د مشاهدې سره سم يو بېل حقيقت ګڼو ولي چي ژوندون تر هغي دنيا ډېر وسيع او ښکلے دے، دکومي چي موږ مشاهده کولای شو- موږ وينو چي ژوندون په هرحال متحرك او روان دوان دے- د رنګينو خيالونو يوه داسي سلسله ده چي کله کله دمشاهدې ترسرحدونو هم وتلې ښکاري- د خوبونو يوه بېله دنيا ده چي د منطق او استدلال تر واړو قوانينو اوچته معلوميږي- که څۀ هم عقل د تجربې پر بنسټ وده کوي او شعور دمشاهدے په ګډون ورسره پختيا مومي خومنطق زياتره د استدلال په هغو قوانينو شکېل ښکاري کوم چي خلګو د خپلو خاصو خواهشونو په لړکي ترتيب کړي وي- ژوندون يو انقلاب آفرين ځيزدے او د هر انقلاب ترمخه د ياغي خيالونو او ولولو يوه نۀ ختم کېدونکې سلسله وي چي د نوې ژوند زېږے ورکوي-

يوازي خيال هم ښايي چي د تخليق معيار لره کافي نۀ وي ولي چي په ادب کي د خيال سره سره د جذبې د افاديت څخه هم انکار نۀ شي کېدای- دنظر او نظريې موجودګي هم پکښې تر ډېره حده ضروري ښکاري- ځکه نو د تخليق د معيار څۀ حتمي ګچه نۀ

شي ټاکل کېدای ولي چي دا په ډېرو ښېلا ښېلو څيزونو پوري اړه لري- په شاعري ، افسانه او ناول کي د علامتونو خپل ځای دے خو په دې شرط چي په معقوليت سره او پر ځای استعمال شي- د ښايست سره سره په شعر کي د روانۍ بيا خپل خوند دے-که په کلام کي رواني نۀ وي نو يې بيا د معيار په اړه سوالونه ضرور را پاڅيږي-

تخليقي تندي په هر دور کي شاعران ،اديبان ،فنکاران او پوهان متحرک ساتلي دي- شعر ادب او فن پخوا هم وجود درلود خو کله به د روايت او مذهب تر سايه لاندي وو او کله به بيا فلسفيانه استدلال ورباندي غالب ؤ- زوړ ادب په هره ژبه کي چي دے ، د روايت او مذهب تر اثراتو لاندي ښکاري او د کلاسيکل ادب په نامۀ يادېږي- ورو ورو د اولسمي پېړۍ په وروستۍ برخه کي فلاسفرانو او پوهانو يوداسي کلتوري تحريک رامخته کړ چي د روايت پر ځای يې بنسټ پر انفراديت او استدلال ولاړ ؤ- په دې موخه چي د ټولني تشکيل له نوې سره پر استدلال او ساينسي کرښو وکړي- دغه تحريک د روشن خيالۍ (Enlightenment) په نامۀ وروسته ډېر مخ په وړاندي لاړ- دا د فکر او دانش يو داسي تحريک ؤ چي پايلې به يې د معقوليت ، استدلال او اعتدال پر اصولونو ايستل کېدې او د ثبوتونو پر بنسټ به تَلل کېدې- دغه تحريک ورو ورو په ټول يورپ کښې پر کلتور ، سياست او حکومت هم بېشمېره اثرات و کړل- بيا معقوليت (Rationalization) ټولنيز قدرونه ، روايتونه او جبلتونه شاته کړل او د ټولني نوے تشکيل يې پر عقلي اصولونو کول غوره

وګڼل- په یورپ کې تر صنعتي انقلاب وروسته په ادب کې یوهٔ بل مهم تحریک هم وده وکړه چې د رومانیت (Romanticism) په نامهٔ یا دېرې- دا په اصل کې د زاړهٔ لاطیني او یوناني ادب د هېئت او روایت خلاف بغاوت ؤ چې پکښې تخیل ته پر منطق باندې ترجیح ورکېده- دا تحریک د ۱۸۰۰ څخه تر ۱۸۵۰ پورې د رېشنلایزېشن او صنعتي ژوند پر ضد کار کاؤ لګیا ؤ- رومانوي تخلیق کوونکو بېرته د فطرت په خوا هڅه وکړه- عشق ، محبت ، غم ، غصه او داسې نورې ډېرې جذبې د پخوا غوندې د رومانوي فن پارو مهم موضوعات هم شول خو د رومانیت خوښَوونکو لیکوالو په تخلیقاتو کې د جذباتو شدت تر پخوا ډېر زیات ؤ- د دوی نعره دا وه چې ادب تش د ادب دپاره دے او فن یوازې د فن دپاره- بلې خواته د ترقی پسندانو ادیبانواو فنکارانو نعره داوه چې ادب او فن دواړه د ژوندانهٔ د پاره دې څکه نو د خلګو د اصلاح کار هم په اسانې سره ترې اخست کېدای شي- په مغربی ادیبانو ، شاعرانو او فنکارانو کې وردزورت ، بلیک ، بائرن ، شیلې ، کیټس ، شومان ، ډوما ، هیوګو ، ویکسز ، براهمز ، دیلکرائے ، بیتهوون ، والټېر ، سکاټ ، ګوئټې ، جارج سینډ او هیډن غوندې ادیبان د رومانوي تحریک مزي نمائندګان وو- رومانوي تحریک د هغه وخت پر سیاست هم خپل ګڼ شمېر اثرات پرېښودل- لِبرل سیاست او نېشنلزم د همدغه تحریک ترسایه لاندې وده وکړه- په رومانیت کې د احساس او جذبې شِّدت د جمالیاتو اصل عناصر ګڼل کېږي- ولوله ، مینه ، غم ، خوف ، تېرر او قرباني داسې

ډېري جذبې په رومانوي تخليقاتو کي مهمي ګڼل کېږي- رومانوي تحريک ټولنيز ارزښتونه او روايتونه بېرته راژوندي کړل-ورو ورو د روايت او معقوليت تر حدونو دباندي و ووت او غېر فطري تخيلاتي دنيا ته هم ورداخل شو- په دغه تحريک کي چونکي تخيّل او جذباتو ته پر معقوليت فوقيت حاصل ؤ ځکه يې نو تر اثر لاندي په ټولنه کي ډېر ستراتلان پېداشول- په رومانيت کي د ذهانت ، اصليّت او ماورائيت اهميت هم ډېر زيات دے- د نۀ رسېدونکي خواهش په هيله ، تخليق کول رومانوي جوهر ګڼل کيږي- دا خبره حتمي نۀ ده چي رومانوي تحريک تر کال ۱۸۵۰ وروسته ختم شو- حقيقت دا دے چي د نورو سيمو سره سره په يورپ کي لا هم تر اوسه د دغه تحريک ګڼ شمېر اثرات شته- د رومانيت خپل افاديت دے خو د تخليق اصل معيار معقوليت ګڼل کېږي- که هغه د خيال په اظهار کي وي ، که د شعر په ترکيب کي اوکه د علامت په استعمال کي- تخليق د هر داسي نوي خيز جوړښت دے چي تر دې لمحه يې وجود نۀ وي- دا يو ګران تَخيّلاتي عمل دے چي دخاص تخليقي نفسياتي جوړښت له کبله ، تخليق کوونکے د بېلا بېلو مُحرکاتو تر اثر لاندي په خپل کړۀ خوښ کاندي- معياري تخليق د لاشعور له شکمه پېدا کېږي ، خوشبو يې د مشکو په شان ادب مېنان ځان ته متوجه کوي او پزيرايي يې لوستونکي او کتونکي پخپله کوي-

## اخځليك


1- رسول حمزاتوف ، ’ مېرا داغستان ‘ د اجمل اجملي ژباړه ، دارالاشاعت ترقي ماسکو ۱۹۸-

2- ډاکټر باقي دراني ، ’پښتانهٔ د تهذيب په ځپو کي ‘ صحاف نشرياتي موسسه کاسي روډ کوټه ، ۲۰۰۸

3- ډاکټرباقي دراني ، ’د فکرتال ‘ صحاف نشرياتي موسسه کاسي روډ ، کوټه ، ۲۰۱۳

4- موکن هاپټ ، "Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious" يعني ’ سيګمنډ فرايډ: د لاشعور پلټونکے ‘ آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۹

5- ژونګ کارل ګستاؤ ، Man and his Symbols يعني ’ انسان او د دهٔ علامات ‘ ، ډبل ډې ، ۱۹۶۹ ، دوهم ا شا عت ليورليف ۱۹۹۷ —

6- فرېډرك شېلينګ ، Idias for a philosophy of Nature يعني ’دفطرت د فلسفې نظريات ‘ کېمبريج يونيورسټي پرېس لومړے چاپ ۱۷۹۷-

7- اېنډرسن جان ، کاګنيټيو سايکالُوژي ، (Cognitive Psychology) ځلورم ايډيشن ، فري مېن ، ۱۹۹۵

8- جارج ويليم فرېډرك هېګل ، "The Science of Logic" يعني د استدلال ساينس ، او Hegel هېګل ، د پيټر سينګر په قلم ، آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۸۷

9- درېبل مارګرېټ ، The Oxford Companion to English Literature يعني ’د آکسفورډ د انګرېزي ادب ملګرے ‘ پنځم اېډيشن ، آکسفورډ پرېس ۱۹۹۸-


* * *

# تخليقي نفسيات

نفسيات يا سايکالوجي د ذهن او رَويې ساينسي علم ته ويل کيږي- ساينسي په دې معنا چي دا د مشاهدې او تجربې په رڼا کي د مسئلو د حل لاري لټوي- په دغه حقله د رَويې مشاهده کوي او د عمل په ګچه يې د ردِعمل جاج اخلي- له نفسياتي اړخه چونکي ذهن پر شعور ، زېر شعور او لاشعور مشتمل دے ځکه نو د دغو درو واړو جاج اخستنه هم په نفسياتو کي راځي- د شعور او لاشعور مشاهده چونکي ممکنه نۀ ده ځکه يې نو جاج اخستنه د انسان د رَويې سره تړلې ده ، ولي چي د رويې جاج په آساني سره اخست کېداى شي- نفسيات لومړے ځل جرمن فزيالوجيسټ ويلهېلم ونډټ[1] په رسمي توګه د يوۀ ساينسي علم په حېث په خلګو وپېژندل ، کنې تر دې له مخه به هرڅۀ د روحانياتو سره تړل کېدل-

پېرا سايکولوجي د نفسياتو هغه څانګه ده چي تړاو يې د هغو خيالونو سره دے کوم چي تر فطرت هم بره ښکاري او په طبيعي قوانينو يې وضاحت نۀ شي کېداى- پېرا سايکوپېتي بيا هغه

علم دے چي پکښې د پېرا سايکولوجي سره تړلي ناروغۍ تر بحث لاندي راځي، لکه غېبي حکم اورېدل، د مړو سره خبري کول، پېرانان مسخر کول، د پېري سره خبري کول او داشان نور ډېر څۀ د پېرا سايکوپېتي په دايره کي راځي- کله کله آواره او اوږده خيالونه د احساس تر دايره هم بهر شي او په څۀ نوې غوندي دنيا کي الوتني کوي ځکه نو مافوق الفطرت احساسات يا اېکسټرا سېنسري پَرسېپشنز بلل کيږي- دغه تصورات زموږ په ټولنه کي يا خو د تصوّف تر سايه لاندي وده کوي لګيا دي او يا بيا کله کله په ادب کي د علامتونو په توګه ليدل کيږي، چي ژوندے مثال يې د رحمان بابا دا شعر دے[2]:

په يوۀ قدم تر عرشه پوري رسي
ما ليدلے دے رفتار د درويشانو

روحانيت او ټېلي پېتي هم د پېرا سايکولوجي مُهم موضوعات دي- د ښېلګې په توګه پر ۲۶ جمادي الاخرىٰ د شمس تبرېز او مولانا جلال الدين رومي[3] تر منځ په قونيه کي ملاقات او د رومي په ژوند کي د عظيم انقلاب واقعه د روحانيت په تاريخ کي يو مهم باب ګڼل کيږي- دغه ملاقات مولانا رومي له عالمانه شعوري دنيا او سجاده نشينۍ څخه د سرمستۍ ويوۀ ښېل جهان ته منتقل کړ- شاعر خو مولانا جلال الدين رومي تر دغي واقعې لمخه هم ؤ مګر د روحانيت سره يې تړاو ښايي چي نۀ ؤ- د نړۍ په نورو سيمو کي همدغه شان رَويې ليدل کيدې ځکه نو پوهانو پرنفسياتو دتحقيق ضرورت محسوس کړ-

ورو ورو نفسيات د تحقيقي موخې په ترڅ کي پر بېلا بېلو شعبو ووېشل شول چي حياتياتي نفسيات ، ارتقايي نفسيات ، ټولنيز نفسيات کوګنيټيو يا ادراکي نفسيات ، او کلينيکل نفسيات په کښې شامل دي- چونکي دلته تخليق تر بحث لاندي دے ځکه به نو بحث تر هماغو شعبو پوري محدود ساتو کومي چي د تخليق سره اړه لري- د تخليق سره د حياتياتي ، ټولنيزو او کوګنيټيو يا ادراکي نفسياتو ډېر ټينګ تړاو شته ځکه نو تخليقي نفسيات پر دغو څانګو بحث کوي-

په نفسياتو کي مهم سوالونه دادي چي انسان څنګه فکر کوي ؟ احساس يې څۀ دے ؟ او رَويه يې څۀ رنګه په ذهن پوري اړه لري ؟ يعني د رَويې څرخ څله همه وخت روان دوان وي ؟ د دغو ټولو سوالونو ځوابونه تر ډېره حده د نفسياتو په کوګنيټيو ماډل ممکن دي چي څۀ نۀ څۀ تفصيل يې د فکر ، احساس او ياداښت تر عنوانونو لاندي وړاندي کړل شوے ؤ او نور وضاحت به يې په راتلونکو پاڼو کښې کېږي-

په تخليقي عمل کي د نفسياتي اصولونو استعمال د جديد دور يو اهم ټېکنيك دے- نفسياتي ناول د اوسني دور تر ټولو مُهم ناول ګڼل کيږي- دا د کردار داخلي ذهني کېفيات او نفسياتي وارداتونه تر بحث لاندي راوړي- په دې کي په لِټرېري مهارت د کردار د شعور پلټنه کيږي او لوستونکو ته د کردار تر داخلي نفسياتي لوَړو اوځوړو پوري رسايي ورکول کيږي- په شاعري ، افسانه او ډرامه کي

هم نفسياتي ټېكنيك په كار راوست كيږي- په دغه ټېكنيك د تخليق كوونكي د جمالياتي شعور جاج اخست كيږي او د تخليقي تنقيد بُنيادي اصولونه په وضع كيږي[4]- كه څۀ هم په فلسفه كي د ښكلا او ميني پر مسئلو دومره بحث نۀ دے شوے ، د څومره بحث چي دغه موضوعات حقداره دي خو په نفسياتو كي يې وضاحت شته- د ښكلا قدر په هر زړۀ كي موجود وي خو توجيهه يې خال خال كسان كولاى شي ولي چي د هر چا د حسن معيار بېل وي- نفسيات يوازينے علمي مېدان دے چي د اړو تخليقي مسئلو د حل كولو ګنجايش پكښې ښكاري[5]- په هر دور كي خلكو د ښكلا څخه اثر اخستے دے خو د ښكلا د فطرت پلټلو هلي ځلي يې كمي كړي دي- اوس هم ځوك ښكلا په رنګونو كيويني او ځوك يې په سازونو او آوازونو كي احساسوي[6]- خو دا په اصل كي يوه نفسياتي مسئله ده چي حياتياتي او سماجياتي اړخونه هم لري-

د تخليق او تخليقي محركاتو ډېر اوږد تاريخ دے خو تخليقي نفسيات د جديد دور علمي موضوع ده- د لاشعور ، اجتماعي لاشعور او تخليقي سانچو نفسياتي توضيح غوندي څۀ منطقي څيز په لرغوني تخليقي تاريخ كي چرته هم نۀ ښكاري- تر عيسیٰ عليه السلام مخكي د هغه وخت فلسفي فېثا غورث موسيقي او ښكلا د رياضي په دسمال كي پېچلي وو او د كائناتي توازن نوم يې وركړے ؤ- د سُقراط په دور كي يونانيانو جماليات هم د طبيعات سره تړل او په همدغه انداز يې د تخليق وضاحت په كاوۀ- افلاطون ښكلا د نېكۍ سره پيوندَوله او

د اخلاقياتو د ترويج په موخه يې په کار راوستله- خو ارسطو په هغه وخت کي هم د ښکلا يو معقول وضاحت کړے ؤ، چي دا په يوۀ مربوط ’کل‘ کي د اجزا د متوازن فطري ترتيب نوم دے[7]- بيا باؤم ګارټن ډېر وروسته ’د ښکلا و فطرت ته‘ ځکه د جمالياتو نوم ورکړ چي د دۀ په نېز دا د علم يوه بېله څانګه وه- ځکه نو د ښکلا او ميني غوندي نورو ډېرو تخليقي موضوعاتو تړاو تر فلسفې زيات د نفسياتوسره دے- مرکز يې په انساني ذهن کي د يادا‌ښت په شکل وجود لري، د کار کولو نظام يې دکوګنيشن[8] يا ادراک په نامۀ بلل کيږي او عِلمي تکل يې د تخليقي نفسياتو په نامه يادېږي-

د نفسياتو تاريخي پسِ منظر څۀ داسي دے چي په هر دور کي فلسفيانه بحثونه ورباندي شوي دي- خوپه رسمي توګه نفسيات د رومانيت (Romanticism) تر تحريک وروسته جرمن فزيالوجيسټ ويلهېلم ونډټ[1] په ۱۸۷۹ کي په دنيا وپېژندل- دے د نفسياتو باني ځکه ګڼل کيږي چي په همدغه کال يې د جرمني په ليپزينګ يونيورسټي کي د نفسياتو ساينسي لېبارټرۍ خلاصه کړه او نفسياتو ته يې د يوۀ ساينسي علم حېثيت ورکړ- بيا د هاورډ يونيورسټۍ پروفېسر ويليم جېمز په کال ۱۸۹۰ کي يو زخيم کتاب Principals of Psychology يعني ’دنفسياتو اصولونه‘ چاپ کړ، په کوم کي چي دۀ د نورو ډېرو موضوعاتو سره سره پر انساني شعور او بېلا بېلو جذباتو هم اوږد بحث کړے ؤ- د دۀ د دغو اصولونو تر اثرلاندي بېلا بېل علمي ،لِټرېري ، نفسياتي او سوشل تحريکونه را پورته شول —

په کال ۱۹۱۶کي په روس کي د شاعرانه ژبي سوسايټۍ يعني Society for the Study of Poetic Language يو تحريک پېل کړ چي د فارمليزم ( Formalism ) په نامۀ يادېږي- دا تحريک د رومانيت پر ضد راپورته شو- د دغه تحريک موخه داوه چي داسي ساينسي ادب تخليق کړ شي چي آزاد او حقيقي وي- د دوی استدلال دا ؤ چي ادب د خارجي حالاتو څخه آزاد څيز دے او ژبه يې هم له عمومي ژبي څخه بېله ده ځکه نو ژبپوهنه د ساينسي ادب بنسټ جوړېدای شي- د فارماليسټانو نظر داؤ چي ادب او ليټرېچر خپل بېل تاريخي پسِ منظر او پېشِ منظر لري چي ترتيب يې په تواتر سره بدلېږي او ورو ورو نوښت پکښې راځي- چونکي د ادب تړاو د انساني ذهن او ژبي سره دے ځکه نو ادبي تخليقي کار په ساخت اوهيئت کي له عام زېب او زينت څخه ډېر بېل دے- د فارمليسټانو زور د تحرير پر هغو جزونو ؤ چي په آساني سره ګڅه کېدای شول- لکه ګرامر ، سينټېکس ، عروض او نور ګڅه کېدونکي څيزونه- همدغه دوی ساينسي ادب ګڼۀ چي انفراديت او ماورائيّت دوی لره پکښې مهم نۀ وو-

فارمليزم په امريکا کې څۀ خاص مقام حاصل نۀ کړ ځکه نود ويليم جېمز فکر وروسته هم د فنکشنليزم (Functionalism)په نامۀ په امريکا کي تر ډېره دوام ولاړۀ- فنکشنليزم اوس هم په نړۍ کي د سوشيالوجي يوه مهمه علمي موضوع ده- دا د اجتماعي لاشعور پر بنسټ دا بحث کوي چي شوشل آرډر څۀ دے؟ او پايېدونکې ټولنه

ځۀ رنګه جوړېږي؟ فنکشنليسټان داعقيده لري چي د ټولني بقا او په ټولنه کي د کس پايېدل په څلورو بنيادي ضرورتونو پوري اړه لري او هغه دي دوډۍ، مکان، لباس او پېسه- که د خلګو سره دا نۀ وي نو به ټولنه د انتشار شکار وي- خو ورسره ورسره د سټرکچرليزم (Structuralism) په نامۀ يوبل تحريك هم راپورته شو چي يوې خوا ته يې د اېډورډ براډفورډ ټيچنر تر رهبري لاندي د ويلهېلم ونډت فکر ته دوام ورکړ او بلي خواته يې دا نظر هم ؤ چي يوازي ژبپوهنه د ساينسي ادب بنسټ نۀ شي جوړېدای بلکي کاګنيټيو ساينس او کلتوري ساخت هم ورلره لازمي دي- د دوی نظر داؤ چي د نورو مادي څيزونو په شان د شعور هم خپل ساينسي جوړښت شته چي له زوکړي څخه تر دې دمه پوري د کس واړۀ ياداښتونه پکښې جمعه کېږي او پر دغه بنسټ د فرد نفسياتي جاج اخست کېدای شي- خو دغه تحريك هم په ۱۹۲۷ کي دټيچنر د مړيني سره پای ته ورسېد-

د نولسمي پېړۍ په ورستۍ برخه کي د ونډت اوجېمز سره سره د نفسياتو په دنيا کي يو نوے نوم سيګمنډ فرايډ[9] خلګو وپېژندے- لکه مخکي چي بحث ورباندي وشو، دۀ يوې خواته د انساني شخصيت بېلا بېل اجزا وړاندي کړل چي ايډ، ايګو او سپرايګو پکښې شامل دي- بلي خوا ته يې د شعور سره سره د **لاشعور** تصوّر هم ورکړ او پر دغه بنسټ يې د نفسي تحليل Psychoanalysis نظريه وړاندي کړه- دا يې څرګنده کړه چي د لاشعور پلټنه د نفسياتي ناروغيو د جاج اخستني مهمه ذريعه ده او

پر دغه بنسټ د دغو ناروغيو علاج هم ممکن دے- دۀ پر عالمي سطح دنفسي تحليل په نظريه د نفسياتو وشُعبې ته يو نوے علمي حېثيت ورکړ- دۀ نۀ يوازي د لاشعور تصّور وړاندي کړ بلکي د ابتدايي جبِلي احساساتو موجودګي يې هم پکښې ثر ګنده کړه- د دۀ د نفسي تحليل مهم ټکے دا ؤ چي ابتدايي جبِلي احساسات په کچنيوالي يو له بله سره متصادم وي او ماشوم څۀ نتيجه ترې نۀ شي اخستاى ځکه يې نو په ذهن کي په تواتر سره د تحليل يو عمل جاري وي- يوې خواته د دۀ نا آسوده جنسي خواهشونه وي او بلي خواته د مور ، پلار او ټولني بېلا بېلي رَويې- په نتيجه کي يې راپاڅېدلې وېره ، وسوسې ، پرېشانۍ او نور ډېر څۀ مسلسل د دۀ په لاشعور کي سره جمع کيږي- همدغه يې ورو ورو لاشعوري پنګه شي چي د نفسياتي ناروغيو په حالت کي يې جاج اخستل کېداى شي او علاج يې هم په کېدلاى شي- کله چي بالغ شي او عمر وربāندي تېريږي نو د دغو لاشعوري احساساتو غوټي هم ورو ورو وربāندي خلاصيږي- زياتره خو انسان په شعوري هلوځلو خپل لاشعوري احساسات هم متوازن ساتي خو کله کله داسي وشي چي دے د ځينو خلاف په خپل درون کي احتجاج کوي لګيا وي- دغه داخلي احتجاج يې تشويش زيات کړي او د نفسياتي ناروغۍ شکل اختيار کړي- د نفسي تحليل په ذريعه فرايډ مريضانو ته پر خپلو يادابښتونو ، فکرونو ، خواهشونو او احساساتو د ګائېدو پُوره موقعه ورکوله او بيا به يې د مريض له دغو معلوماتوڅخه ددۀ دنفسياتي مسئلې جاج اخست ، نتيجه به يې ترې

راايستله او علاج به يې هم ورکاؤ- فرايډ د خاص انساني تشويش يعني پېري نيوَلو (Hysteria) وضاحت په دې ډول وکړ چي دا پر انسان باندي د يوهٔ بل مخلوق اثر نهٔ دے بلکي د هغو لاشعوري جذباتو اظهار دے چي تر ټولنيز دباؤ لاندي دننه قيد پاته شوي وي- اوس د نفسياتو ماهرين د بېلا بېلو مسلسل بدلېدونکو ذهني کېفياتو جاج د نفسياتي تحليل په ذريعه په آساني سره اخستلاى شي او د تخليق او روحانيت سره د تړلو ډېرو مسئلو ساينسي وضاحت هم کوي- دغي نظريې د شعور سره سره د لاشعور تصوّر هم څرګند کړ او پر دې يې ټينګار وکړ چي په انساني ذهن کي يو داسي لاشعوري قوت هم شته چي د شعوري استدلال تر منطقي اصولونو بالاتر دے- اوس دا منل کيږي چي لاشعور د نفس تر ټولو غټه برخه ده چي نهٔ خو يې عام انسان ته ادراك شته او نهٔ شعوري کنټرولورباندي لري- خو هغه ټول مهم کارونه چي د انسان په ژوندانهٔ کي د قدر او ارزښت وړ دي په همدغه لاشعور پوري اړه لري- د سيګمنډ فرايډ سره که څهٔ هم د ډېرو پوهانو نظرياتي اختلاف ؤ خو د دهٔ د لاشعور پر بنسټ ولاړه د نفسي تحليل نظريه په نفسياتو کي ډېره مُهمه ثابته شوه او دډېرو اړو سوالونو د علمي ځوابونو امکان يې ظاهر کړ- د دهٔ نظر دا ؤ چي فکر او احساس د تصوّراتو په شکل په لاشعور کي بدليږي رابدليږي- د بېلا بېلو خيالونو او تصوّراتو له آمېزش څخه نوي نوي تصوّرات جوړيږي چي کله کله ډرامايي شکل هم اختيار کړي- دا زياتره د علامتونو په شکل کي وي چي يو تصوّر له اصل شکل څخه

ببخي ببل په بل علامت ظاهرَوي- د فرايډ د لاشعور دغه ماډل او د نفسي تحليل دغي نظريې پر خلګو بې شمېره اثرات وکړل- دهٔ به د لاشعوري قوت په حقله د خوبونو، جنسي غلبې او انساني هوډ مثالونه ورکول- د دهٔ خيال ؤ چي په دغه نظريه د يو شمېر تخليقي مسئلو حل هم ممکن دے ولي چي تخليقي تصورات د خوبونو سره مماثلت لري او لوی شمېر علامتونه هم پکښې پکار راځي- لکه چي خوب ليدل يو لاشعوري نفسياتي عمل دے همدغه شان ادبي تخليق د يوهٔ لاشعوري واردات په نتيجه کي کيږي- د خوب مثال به دهٔ په دې شان ورکاؤ چي د انسان تر برداشت وتلي فکرونه او تراخه احساسات له کچنيوالي د دهٔ په لاشعور کي مېشته وي- دا کله په خوب کي او کله د يوې خاص وقوعې تر اثر لاندي د تخليقي تندي په شکل د شعور تر سرحده پوري راځي- دهٔ انساني ذهن د يخي د يوې داسي ټُکرې مانند ګاڼهٔ چي کمه حصه يې تر اوبو دباندي ښکاري او زياته برخه يې ډوبه وي- کله چي د يوې وقوعې تر اثرلاندي سره وښوري نو يې ډوبه برخه هم څهٔ ناڅهٔ ښکاره شي- تر اوبو بهر حصه يې دهٔ شعور ګڼلے ؤ او ډوبه برخه يې لاشعور بلله- د دهٔ په نظر د خلګو ذهنونه د لاشعوري قوتونو څخه ډېر زيات اثرات اخلي او همدغه يې د شخصيت برخي شي- تر دهٔ لمخه په دغه اړه د پوهانو او دانشورانو استدلال يوازي پر بېلا بېلو مفروضو ولاړ ؤ- د جمالياتو، تخليقاتو، او ټولنيزو ارزښتونو په حقله څهٔ ساينسي فکر وجود نهٔ درلود- د دهٔ نظريه وروسته د نفسياتي او تخليقي تنقيد اساس جوړه

شوه- په ۱۹۳۸ کي دهٔ و بي بي سي راډيو ته په خپله آخري مرکه کي وويَل چي زما د لاشعور پر نظريه به پوهان ډېر تنقيد وکړي خو همدغه به وروسته دوی ته لار ښوونه کړي- دوه کاله وروسته دے د زامي له کېنسر څخه وفات شو خو نظريه يې واقعي هم تر اوسه لا ژوندی ده-

د فرائيډ د لاشعور نظريه يوې خواته د ادبي نفسياتي تنقيد اساس جوړه شوه بلي خواته يې د عقل او دانش په اړه نوي نوي سوالونه هم را وړاندي کړل- د دغو سوالونو د ځوابونو په تلاش کارل ژونګ[10] را و ووت- دے په نفسياتي تحقيق کي نور هم مخته لاړ- لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، دهٔ د **اجتماعي لاشعور** نظريه مخته راوړه او د ذاتي لاشعور سره سره يې د ټولنيزي تجربې پر بنسټ د لاشعور يوه بله برخه هم وپلټله- دهٔ په دغه تصوّر د فرايډ نظريه نوره مخ په وړاندي يووړه او د نفسياتو په علم يې د انساني ذهن او تخليقي عمل بهتر تفهيم وکړ-

بيا د آسټريا الفريډ ايډلر دا نظريه مخته راوړه چي د هر ذهني عمل اصل محرك د انسان د کمترۍ احساس دے چي دے د ماحول سره په مطابقت پېدا کوولو آماده کاندي- دهٔ د فرايډ او ژونګ د نظرياتو سره اختلاف درلود ځکه يې نوے نظر وړاندي کر- په دغه اړه نوري نظريې هم وړاندي شوې خو تر عصري تنقيد لاندي يې وده ونهٔ کړه تر څو پوري چي دانساني رَويې پر بنسټ د لاشعور پلټنه پېل شوه- دغه تحريك د بيهېويئريزم(Behaviorism) په نامه مخ په

وړاندي روان شو او په نفسياتو کي يې ورو ورو انقلاب راووست- لکه مخکي چي د احساس تر عنوان لاندي بحث ورباندي وشو، په انساني ذهن کي د رَويې څرخ د نفسياتي مسئلو د حل وضاحت کولای شي- دا تر ډېره حده په کوګنيشن يا ادراک پوري اړه لري-

په اوسني دور کي د تخليقي نفسياتومرکزي ټکے څکه ادراك يا کوګنيشن دے چي دا د تخليقي ذهن د کار کولو هغه مربوط نظام څرګندَوي چي ساينسي بنسټ لري او د تخليقي نفسياتو د واړو اړو مسئلو د ځواب صلاحيت هم پکښې شته- معلومات لټوَل، خوندي کول، پلټل او بيا په کار را وستل د دغه نظام برخي دي، چي شعور او لاشعور دواړه برخه پکښې لري- تخليقي عمل پېچيده ځکه دے چي بېلا بېل محرکات يې دي او هر محرك يې ځان لره يو عِلمي مېدان دے- تخيُل، ذاتي انفراديت او ماحول که څۀ هم جُدا جُدا تخليقي محرکات دي خو يو له بله سره په څۀ خاص ترتيب کي خوند او رنګ پېدا کولای شي- تخيُل او ذاتي انفراديت د تخليق کوونکي د شخصيت سره تړاو لري او د شخصيت مُهم جُز نفس دے- لکه مخکي چي يې ذکر وشو، نفس په انساني ذهن کي د لاشعور هغه پنګه ده چي جبري ازّلي او وجداني احساسات پکښي وده کوي- دغه احساسات دماحول تر خارجي اثراتو لاندي په تخليقي عمل کي په کار راځي- تخليقي کارونه د نړۍ په هره ژبه کي شوي دي خو د تخليقي نفسياتو په اړه تحقيق خال خال ښکاري- شاعري، افسانه، ناول، ډرامه او نور ډېر څۀ د مغربي ژبو سره سره په مشرقي ژبو کي

هم وجود لري خو نفسياتي اړخونه يې کم کم څېړل شوي دي- دا هم له ډېره وخته اوربدل کيږي چې شاعري په څۀ خاص موډ کي ممکنه ده خو دغه موډ ته د تخليقي نفسياتو نوم نۀ ؤ ورکړل شوے او نۀ مخکي د تخليقي نفسياتو څۀ واضح تصوّر ؤ-

موډ د نفسياتو مهمه موضوع ده- دا يو خاص ذهني کېفيت دے چې د ډېرو بېلا بېلو وقوعاتو تر اثر لاندي بدلېږي رابدلېږي- دغه بدلون يې ترڅۀ خاص حده پوري نارمل ګڼل کيږي- تردغه حد زيات يا کم بيا نفسياتي ناروغي ګڼله کيږي- دموډ يو شمېر ناروغۍ دي چې علاج يې په کلينيکل نفسياتو کي په آساني سره کيږي- هيسټيريا ، اېنګزائيټي ، ډيپرېشن او مېنيا اوس بلکل عامي ناروغۍ دي او علاج يې هم په عامو دواګانو ممکن دے- تخليقي موډ هم يو نارمل ذهني کېفيت دے په کوم کي چې تخليقي تنده زياتيږي او تخليق کوونکے په تخليق کوولو آماده کاندي- په دغه کي هم که چيري تر خپل حد زيات بدلون راشي نو بيا ناروغي شي- تخليقي موډ زياتره موروثي وي او په ځيني خاندانونو کي زيات ليدل کيږي- تخليق يې په تعليم او تر بيت پوري دومره اړه لري چې ښکلا ، خوند او معقوليت پکښې پېدا کړي- د بېلګې په توګه د کلي يوه عامه پېغله هم هره روځ داسي ډېر بېلا بېل څيزونه تخليقوي چې تر دې لمخه د دې په شعور کي نۀ وي- کله داني سره پېئي لړونه ترې جوړوي او بيا ورته يو داسي ترتيب ورکوي چې تر دې لمخه دې پخپله هم نه وي ليدلے- له همدغو لړونو

غاړکۍ جوړوي او ګوتمۍ ترې تيارَوي- کله په ستن پر خپلو جامو هغه هغه ګلونهٔ او نقشونه جوړوي چې عقل ورته حېران پاته شي او په نقش و نګار کې يې دبېلا بېلو رنګونو استعمال په دومره مهارت کوي چې آرټيسټ هم ګوته په غاښ ورته ګوري- دا يوازې هغه پېغله کولای شي چې تخليقي نفسيات يې په دغو کړو خوښه ساتي- که چرته همدغه پېغله تعليم وکړي او بيا آ ګاهي ولري نو به يې د تخليق نوعيت اومعيار ښايي چې بېل وي خو د تخليقي نفسياتو له کبله او د خپل داخلي انفراديت په وجه به دا يو بل تخليقي کار ته دوام ضرور ورکوي-

اوس سوال دادے چې آيا پر کوګنيشن يا ادراک ولاړ د تخليقي نفسياتو د دغه ماډل مهم اجزا چې انساني فکر، احساس او رَويه درې واړه ګډون پکښې لري، بدلېدلای هم شي او که نهٔ؟ ځواب يې دادے چې هو، په نفسياتي توګه دا په تواتر سره بدليږي رابدليږي- لکه چې به ښرګندون نمبر۲۳ کې ښکاري فکر، احساس او رَويه يو پر بله اثرات سره لري- که څوك په خپل فکر کې مثبت بدلون راوړي نو په احساس او رَويه کې يې پخپله بدلون راځي- همدغه شان که په رَويه کې د بدلون کوښښ وشي نو په فکر او احساس کې هم بدلون راځي- يعني په هر يوهٔ کې چې بدلون راوړل شي دغه نور دوه پخپله ورسره بدليږي-




ځرګندون نمبر۲۳ که تخليق کوونکے په خپل فکر کي مثبت بدلون راوړي
نو يې په نفسياتي توګه په احساس او رويه کي پخپله بدلون راځي

د نفسياتو دغه اصول د تخليق په حقله ښځي صحي دے ولي چي هر تخليق د تخليقي تندي تر احساس لاندي د فکر په ملګرتيا سر ته رسيږي- تخليقي عمل يوه رَويه ده چي تړاو يې د فکر او احساس سره دے ځکه نو په فکر او احساس کي د بدلون هلي ځلي د تخليق نوعيت او معيار دواړه وربدلولای شي-

لکه چي په ځرګندون نمبر ۲۴ کي ځرګنده ده ، د تخليقي نفسياتو بنسټ پر دوو څيزونو ولاړ دے- يو لکه د تخليق کوونکي




څرګندون نمبر ۲۴ تخليق او د اديب نفسياتي جوړښت

ادراك يا كوګنيشن او بل د دهٔ انفرادي حياتياتي جوړښت- ځكه نو په حقيقت كې تخليق دخپلو تركيبي جُزونو تر مجموعي اثر ډېر اوچت مقام لري- د تخليق كوونكي انفرادي نفسياتي جوړښت څهٔ داسي وي چي دے هر كله د ماحول تر اثراتو لاندي په اضطراب كي ساتي او همدغه كيفيت يې په تخليق آماده كاندي- ويښ انسان د خپلو سماجي، تهذيبي او كلتوري ارزښتونو تر اثراتو لاندي دټولني درد محسوسَوی او خپل دغه احساس يې و تخليق ته اړ ساتي- په اوسني

دور کي د تخليق بېلا بېل اړخونه د انساني نفسياتو پر بنسټ څرګندېږي- تخليقي نفسيات يوه نوې شعبه ده او دا د هغو پېچلو سوالونو سم ځوابونه لټوي کوم چي په انساني ذهن کي د تخليقي نظام په اړه له ډېره وخته را پاڅېږي- پر شعور، لاشعور او اجتماعي لاشعور غوندي نفسياتي موضوعاتو خو موږ څه نۀ څه بحث وکړ، اوس به يې پاته برخه هم وڅېړو- که څۀ هم تخليق په نفسياتي توګه تر ډېره حده د کس په داخلي انفراديت پوري اړه لري، خو اثرات يې په هره توګه اجتماعي دي- يو کس تخليق يوازي د خپل ځان د داخلي تسکين دپاره نۀ کوي بلکي اجتماعي لاشعور يې په دغه کار را پارَوي-

لکه چي مخکي هم بحث ورباندي وشو، ادراك يا کوګنيشن په ذهن کي د هغه بشپړ عمل نوم دے په کوم کي چي تر ليدلو کتلو لوستلو او اورېدلو وروسته، د انسان احساس، توجه، خيال، پوهه، يادانښت، ګمان، وسواس، ژبه او قوّتِ فېصله ټول برخه اخلي- دا نظام په اصل کي د کس پر يادانښت ولاړ دے او دا يادانښت درې بېلا بېلي برخي لري، لکه محسوساتي يادانښت، پلټونکے يادانښت او پوخ يادانښت- کله چي تخليق کونکے يو څيز محسوس کړي نو بيا په خپل داخل کي د دغه احساس په اړه معلومات پلټي او په نتيجه کي يې فېصله کوي چي څۀ کول په کار دي- په ذهن کي دغه صلاحيّت د کوګنيشن سره تړاؤ لري چي د کمپيوټر په شان په يوۀ وخت ډېر نور کارونه هم کولای شي- د يوۀ

فکر تر څنګ څنګ د بېلا بېلو نورو ډېرو اوږدو خيالونو لړ وي چي سلسله يې کړۍ په کړۍ پېودل کېږي-

که څۀ هم د انساني فهم او ادراك بحث له پېړيو راروان دے خو دڅېي سره يې بشپړ تړاو په شلمه پېړۍ کي امريکي ژبپوهاند نوم چومسکي تر بحث لاندي راووست- د دۀ نظر دا ؤ چي په انساني ذهن کي له ازله دا اعلیٰ صلاحيت شته چي بېلا بېل لفظونه محسوسولای شي او هماغه شان يې بېرته ويَلای شي- د ذهن جوړښت يې داسي دے چي له کچنيوالي څخه د ژبي ګرايمر هم بېله څۀ ډېرو هلو ځلو ، پخپله زده کولای شي- د ادراك په نظام کي تر احساس ، توجه او خيال وروسته د نفسي تحليل مرحله ډېره مهمه ده چي د فرائيډ او ژونګ په هلو ځلو تر ډېره حده آسانه شوله-

دا هم څرګنده ده چي تخليق تر خپلو اجزا د ستر 'کُل' نوم دے- يوې خواته قافيه ، رديف ، تشبيه ، استعاره او بحر د شعر مهم اجزا دي بلي خوا ته خيال ، احساس ، مينه او ښکلا- خو د دغو ټولو مجموعي اثر هم د شعر د خپل اثر برابر نۀ وي- ورسره ورسره دا په يقين سره ويَل کېدای شي چي تخليق کوونکے په تخليقي عمل کي د ټولني ، کلتور ، تهذيب او خپل دور تر اثر لاندي هم وي- دے به د خپل وخت يا دور د ملکي ، علاقايي او عالمي حالتو سره سم تخليق کوي- دا هيڅ امکان هم نۀ لري چي اديب دي د خپل وخت د همه واړو اثراتو څخه ځان بېل وساتي او تخليق دي يې د هره لحاظه نوے او آزاد وي- که يې د تخليق انداز هر څومره بېل او نوے هم

وي خو په هر حال به د خپل دور په دايره کي د ننه وي او دټولني ، کلتور او تهذيب اثرات به په هره توګه ورباندي ښکاره وي[11]-

په تخليقي نفسياتو کي د خيال پر اهميت اوّل ځل امريکن نفسياتي فلاسفر جېمز ويليم رڼا واچوله- دۀ په عيسوي کال ۱۹۰۷ کي د پرېګمېټيزم [12] (Pragmatism) په نامۀ دا نظريه را مخته کړه چي د يوۀ خيال اصل اهميت د هغۀ په اثراتو پوري اړه لري- که يې اثرات مثبت نۀ وي نو دغه خيال بيا څۀ معنا نۀ شي لرلای- د دۀ په نظر د خيال معنوي سطحه هغه ده چي د تجربې سره تړلي مسئلې په حل کېدای شي- دۀ دا نظر هم وړاندي کړ چي ريشتيا هغه څۀ دي کوم چي کار ترې اخست کېدای شي او که داسي نۀ وي نو بيا د ريشتيا او دروغ تر منځ ډېر کم توپير پاتيږي- اعتماد يوازي پر ريشتيا کېدلای شي ، پر هر هغه څۀ اعتماد نۀ شي کېدای کوم چي د چا زړه غواړي چي ورباندي ويې کړي- تخليق که د ادب په شکل کي وي او که د نورو لطيفو فنونو په رنګ کي ، تخليق تخليق دے- لطافت او ښکلا د همه واړو فنونو په تخليقي عمل کي يو شانتي مهم دي- د ټولو بنسټ پر خيال دے او دخيال صورت ګري اصل مهارت دے- هر نظم ، هره غزل ، هر ناول او هره افسانه د مجسمې په شان تر ظهور پزيري وړاندي د ذهن په تخليقي سانچو کي په خيالي شکل کي ترتيب مومي- همدغه راز د مصوّر په ذهن کي تر تصوير جوړولو مخکي لا د تصوير يوه خيالي خاکه او د بېلا بېلو رنګونو ترتيب موجود وي- د تخليق اصل جوهر ستر فکر يا سترخيال دے او په واړو تخليقونو کي اساسي اهميت د خيالونو دے نۀ چي د اظهار د

نوښتونو- د تخليق دمعيار بنسټ هم پر ستر فکر ولاړ دے- که څۀ هم دغه فکر د عميق احساس تر اثر لاندي را پاڅي او د پراخ نيت او پراخي تجربې په رڼا کي د تکميل تر حده رسېږي خو اساسي اهميت بيا هم د فکر دے-

د انساني نفسياتو په اړه خو بحث په لنډه توګه مخکي هم وشۀ او د شعور او لاشعور غُټي هم تر ډېره حده خلاصي کړلي شوې خو د ادراك پېچلے بحث لا دوام لري- ګېسټالټ نفسيات په انساني ذهن کي د ادراك پر مېکېنيزم بحث کوي- د نفسياتو دغه څانګه په کال ۱۹۱۰ کي د ايسوسيئېشنيزم خلاف د احتجاج په توګه را اوچته کړله شوه- د ګېسټالټ نفسياتو پر ادب او تنقيدي مباحثو بې شمېره اثرات وشو- لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، ګېسټالټ (Gestalt) د جرمن ژبي لفظ دے او معنا يې د هېئت ، صورت يا شکل کېداى شي- د ګېسټالټ نفسياتو زور پر ياداښت ، ادراك او محرکاتو دے- چونکي فلسفه د فکري لحاظه ' کُل ' ګڼله کيږي او دا د کل سره د'جُز' پر تعلق بحث کوي ځکه نو د کېرول[13] دا وېنا علمي ارزښت لري چي" کُل دخپلو جُزونو تر مجموعې بالا دے" يعني هره تجربه ځان لره خپل بېل حېثيت لري او تاثر يې هم د خپلو بېلا بېلو جُزونو د مجموعي تأثر څخه بېل دے- انسان يې د اجزا شعوري تجزيه کولاى شي خو ارزښت يې د جوړښت د جزونو څخه بلکل بې نيازه دے- په کال ۱۹۴۰ کي د ګېسټالټ نفسياتو ماهر کرټ کوفکا[14] (Kurt Koffka) پر دې خبره ډېر ټينګار وکړ چي ګېسټالټ نفسيات دجمالياتي نظرياتو د مهمو مسئلو حل ايستلاى شي- دۀ په خپل يوۀ

مضمون Symposium of Art كي پر دغه مسئله اوږد بحث كړے ۀ او دا يې د ثابتولو كوښښ كړے ۀ چي په ګېسټالټ نفسياتو كي د معمولي بدلون سره او د مثالونو په ذريعه د جمالياتو د اړو مسئلو حل ايستل كېداى شي- د بېلګې په توګه د يوې افسانې اصل تأثر په هغې كي د موجودو كردارونو د مجموعي تأثر څخه بېل او بهتر ښكاري- همدغه شان هر ناول ځان لره خپل يو انفرادي حېثيت لري او د كردارونو تأثر يې ضروري نۀ دے چي د ناول سره سمون ولري-

لكه چي مخكي يې ذكر وشو ، يوې خواته كه موږ دا وايو چي اديب تخليق څكه كوي چي په نفسياتي توګه تخليق كولو ته اړ دے نو بلي خواته په ساده لفظونو كي دا هم ويلاى شو چي د دۀ آزاد خيال ، آزاده اراده يا 'نيّت'ودۀ ته د تخليق د لاري د انتخاب طاقت وركوي- په لومړۍ خبره كي د تخليق كوونكي پر 'اړتيا' زور وركړل شوے دے چي دغه اړتيا يې په خپل شعوري كنټرول كي نۀ ده څكه نو د تخليق محركات هم د دۀ تر وس وتلي ښكاري- دوهمه خبره د نيت ده چي په ارادي كنټرول پوري اړه لري او دا معنا ښندي چي تخليق تر ډېره حده تر ارادي كنټرول لاندي څيز دے- د بېلګې په توګه كه تخليق كوونكے په اخلاص سره دا اراده وكړي چي په ټولنه كي تحريك را پېدا كړي نو دے كولاى شي چي په خپل زيار دا كار تر سره كړي- ولي چي اخلاص ولوله راپاروي او ولوله بيا د تحريك موجب ګرځي- همدغه تصوّر د لوستونكو د اسانتيا دپاره دلته په څرګندون نمبر ۲۵ كي ښوول شوے دے-




څرګندون نمبر ۲۵ اخلاص ولوله راپاروي او ولوله د تحريك موجب ګرځي

موږ وړاندي دا ذکر هم وکړ چي د تخليق اصل جوهر ستر فکر يا ستر خيال دے- په واړو تخليقونو کي اساسي اهميت د خيالونو دے- او تر ډېره حده د تخليق د معيار بنسټ هم پر ستر فکر ولاړ دے- معياري تخليق نۀ خو يوازي په ' شعوري کوښښ' کيږي او نۀ تش په ' تخليقي موډ' بلکي د فکر سره څۀ نۀ څۀ لېونتوب ضرور مل وي چي تخليق د معيار ترحده رسَوي- ښايي چي ځيني خلګ له همدغه

کبله شاعري د ذهني خلل پېداوار ګڼي- خو زياتره پوهان د شاعرۍ معيار د ډېرو بېلا بېلو تجربو تر اثر لاندي بولي ، ځکه يې د لوی شمېر محرکاتو جاج اخلي- لنډه دا چي تخليق خو پر خپل ځای ، د حُسن او ميني وضاحت هم پر نفسياتي اصولونو باندي په آساني سره کېدای شي- لکه چي په څرګندون نمبر۲۶کي ښکاري تخليق کوونکے




څرګندون نمبر ۲۶ د تخليق د معيار عوامل

چي کله په ستر فکر د ژور احساس تر اثر لاندي د يوۀ تخليق پوخ نيت وکړي او خپله پراخه تجربه په کار راولي نو بيا معياري تخليق په آساني کېدای شي-ولي چي د تخليق معيار د نورو ډېرو عواملو سره سره په پراخ نيت او وسيع تجربه پوري هم اړه لري- د تخليقي عمل په وخت کي د تخليقکار نظر تر څۀ بېل احساس لاندي يو

نوے خيال مخته راوړي چي تر دې لمخه چا نۀ وي وړاندي کړے- دخپلي تجربې پر بنسټ يې په وارو وارو تراشي تر کومه چي يو معياري تخليق ترې جوړوي- تخليق کوونکے د عامو خلګو په شان تش پر دوو پښو ولاړ يو بشر نه وي بلکي د ژوندانۀ پراخي تجربې د انسانيت په ښو خويونو لمانځلے يو بېل غوندي انسان وي چي په مخلوقاتو کي يو بلند پايه او اعلیٰ مقام لري- ځکه خو موږ د خلګو د وجود دوې جدا جدا سطحي منو ، بشر يې هغه طبيعي سطح ګڼو چي ' موجود' ده او انسان هغه معنوي سطح ده چي 'مقصود' ده- تخليق کوونکے چي عميق احساس او ستر فکر ولري او د ننګ مېدان ته راشي نو بيا سړے ګڼل کيږي-

که څۀ هم د تخليق په اړه علمي بحث له پېړيو راروان دے او د شعور تر دايره بهر هم ګڼل کېږي خو د لاشعور ، اجتماعي لاشعور او تخليقي سانچو نفسياتي توضيح غوندي څۀ منطقي څيز تر فرائيډ او ژونګ لمخه نۀ ؤ وړاندي کړل شوے- په جديد دور کي دانساني رَويې پر بنسټ د لاشعور پلټنه پېل شوه او د بيهېويئريزم (Behaviorism) تحريک مخ په وړاندي روان شو- په نفسياتو کي ورو ورو انقلاب راغے او د کوګنيشن يا ادراک پر بنسټ د تخليقي تندي وضاحت په وشو- اوس تخليقي نفسيات د ساينس او آرټ تر منځ د يوۀ پل حېثيت لري او د اړو تخليقي مسئلو د حل ضمانت ورکولای شي- دا د بېلا بېلو **تخليقي محرکاتو** د څرګندولو په حقله هم معقوله استدلال وړاندي کوي-

# اخځليك


1- ويلهېلم مېکس ونډت ، 'د فزيالوجيکل سايکالوژي اصولونه '

(The Principles of Physiological Psychology)

دوه ټوکه ۱۸۳ - ۱۸۴ انګرېزي ژباړه ۱۹۰۴

2- عبدالرحمان بابا 'د رحمان بابا کليات ' ، دانش خپرندويه ټولنه ، پېښور ، سريزه حنيف خليل ۲۰۰۵ ،

3- محمد عبدالسلام ، 'مولانا جلال الدين رومي ' ،

سيټي بك پوائنټ ، نويد سکوائر ،

اردو بازار ، کراچي ۲۰۱۲ ،

4 - جان لاك ، (An Essay Concerning Human Understanding)يعني ,

دانسان پر دانش يو ه مقاله ' ، آکسفورډ يونيورسټي پريس ، لندن

5- والمېن بينجيمن ، د نفسياتو ، نفس ژغورني او نفس پلټني انسايکلو پيډيا ،

(The Encyclopedia of Psychiatry, Psychology, and Psychoanalysis)

هالټ ، ۱۹۹۶ —

6- کريسټل ، ډېويډ ، 'د کېمبريج د ژبو انسايکلوپيډيا ' ،

(The Cambridge Encyclopedia of Language)

کېمبريج يونيورسټۍ پرېس ۱۹۸۷

7- براين مېګي ، ' د فلسفې نکل (The Story of philosophy ) '

ډارلينګ کينډرسلې (ډي کې) کتابونه ، ۲۰۰۱

8- اپنډرسن جان ، کاګنيټيو سايکالُوژي ، (Cognitive Psychology)
ځلورم ايډيشن ، فري مېن ، ۱۹۹۵

9- موکن هاپټ ، "Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious"
يعني ' سيګمنډ فرايډ: د لاشعور پلټونکے ' آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۹

10- ژونګ کارل ګستاؤ ، "Man and his Symbols" يعني ' انسان او د دهٔ
علامات ' ، ډبل ډې ، ۱۹۶۹ ، دوهم ا شا عت ليورليف ۱۹۹۷ —

11 - جارج ويليم فرېډرك هېګل ، "The Science of Logic" يعني د استدلال
ساينس ، آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۸۷

12 - جېمز ويليم ، ' پرګمټيزم : د زاړهٔ فکر نوے نوم '
(Pragmatism: A New Name for Old Ways of Thinking)
پېنګوين بکس ۱۹۰۷

13 - کالوين ويليم ، 'دماغ څنګه فکر کوي( How Brain Thinks)
بېسيك بُکس ، د اشاعت کال ۱۹۹۶

14- هاك ، راګر- 'څلوېښت مضمونونه کومو چي نفسيات بدل کړل ' ،
( Forty Studies that Changed Psychology: Explorations
into the History of Psychological Research. 3rd ed)
دريېم ايډيشن ، پرېنټس هال ، ۱۹۹۸ —

* * *

.



# تخليقي محرکات

دا حقيقت دے چي تخليقي عمل ډېر مشکل او انتهايي صبر آزما عمل دے- دا د هر چا د وس کار نۀ دے چي تخليق وکړي او نۀ هر څوك يوازي په شعوري کوښښ اعلیٰ تخليق کولای شي- هغه عوامل چي يو کس په تخليق آماده کاندي زياتره د پوهانو تر بحث لاندي وي- د نړۍ په هره څنډه کي پوهانو منطقي بحثونه[1] ورباندي کړي دي او بېلا بېل عوامل يې د تخليق موجب ښوولي دي- دلته اوس يو شمېر سوالونه را پاځيږي، لکه دا چي تخليق که دومره ګران او مشکل کار دے نو بيا يې خلګ څله کوي؟ دومره اهميت ولي ورکول کيږي ؟ موخه يې څۀ ده؟ تخليق پکار هم دے او که نۀ؟

يو ځواب يې دا کېدای شي چي تخليق د انسان په هغه قدرتي ذهني صلاحيت[2] پوري اړه لري کوم چي بشر د انسانيت تر معنوي سطحي پوري رسوي- ولي چي د تخليق مُحرکات د يوۀ پيچيده ذهني عمل سره تړاو لري او دغه عمل تر ډېره حده په قدرتي داخلي تخيُّلي انفراديت[3] پوري اړه لري- د تخيّل قدرتي ذهني صلاحيت يو

ډېر پېچلې نظام لري چې ترکيب يې په آسانه توګه د کوګنيشن[4] تر عنوان لاندي ښوول شوے ؤ- دا د تېرو تجربو په رڼا کي نوو نوو تصّوراتو ته دا شان ترتيب ورکوي چي يو نوے تخليق ترې وشي- دغه تخليق[5]خواشيني لري کوي ، مينه زياتوي ، اطمينان ته بلنه ورکوي او خوند پېدا کوي- په داخل کي يو داسي مسّرت راپاڅوي چي يوکس په دغه مشکل کار هم آماده ساتي- خو د هر چا سره ښايي چي داسي نۀ وي[6]- يوه غميزه د ټولني پر لکونو او کروړونو خلګو تېره شي مګر دوه يا درې کسان په دې آماده کړي چي نظم ، يا افسانه او يا ناول ورباندي وليکي ، پر دغو نورو ټولو خلګو د باد د يوې څپې غوندي تېره شي او هيره کړله شي- کۀ څۀ هم د ادب او تخليق تاريخ د انسان تر تاريخ کشر دے خو دا هم حقيقت دے چي تخليق هغه ارزښت دے چي انسان ته تر نورو مخلوقاتو فوقيت ورېخښي- ټپې ، غاړې ، ناري ، کيسۍ او داستانونه له پېړيّو راروان تخليقي اصناف دي او عوامل يې له هماغه وخته تر بحث لاندي دي[7]- تر ابراهيمي مذهبونو لمخه د خلګو دا ګمان ؤ چي د تخليق خدايګوټي انسان په تخليق آماده ساتي- کله چي له دوی څخه د يوۀ صنف خدايګوټے پر چا مهربان شي نو په هغۀ کي د تخليق يو داسي قوت راپېدا کړي چي هر کله يې په تخليق آماده ساتي- دا شان دے له عامو خلګو څخه بېل کړي او د تخليق په قوت يې د شهرت ، عزت او عظمت تر منزلونو ورسوي- د مصر يو باچا اخلاتون[8] چي د خپل وخت لوی شاعر هم ؤ' اتن' د تخليق خدای بللے ؤ او هماغه يې د تخليقي عمل اصل محرك

ګاڼۀ- يونانيانو د 'زيوس' دېوتا نهه ۹ لوڼي ميوزِز(Muses) بللې او دا يې عقيده لرله چي د دوی په واك كي بېلا بېل فنون دي- له دغو څخه يوه د شاعرۍ ميوز هم وه- وروسته ملټن غوندي كټر عيسايي شاعر هم چي كله خپل ايپك (EPIC ) پيل كوي نو د شاعرۍ له ميوز څخه كومك غواړي- ځكه نو په اوروپايي ژبو كي موسيقي اوس هم ميوزيك بلل كيږي او ښايي چي خپله د لفظ "موسيقي"د هماغه ميوز سره تړاو وي —

يوناني فلاسفر افلاطون دا نظر درلود چي د تخليق مُحرك وجداني لېونتوب دے[9] او دغه لېونتوب د 'ميوز' تر روحاني اثر لاندي دے- دغه نظريه تر زرګونو كلونو وروسته لاهم په اوروپايي ټولنه كي وجود لري- اوس هم خلګ دا وايي چي شاعري د خدای عطا ده ، محض په شعوري كوښښ څوك شاعر نۀ شي جوړېدای- دا ځكه چي په اديب يا تخليق كوونكي كښې څۀ نۀ څۀ لااُبالي خاصيّتونه يا نفسي پېچيدګياني په هرحال ليدل كېدای شي- ارسطو چي د افلاطون خپل شاګرد ؤ د دغي نظريئې سره اختلاف درلود- د هغۀ نظر دا ؤ چي د ادبي تخليق اصل محرك د انسان د نقل كولو جِبلت دے- كله د فطرت نقالي كوي او دجذبې د اظهار خواهش يې هم د تخليق په شكل كي د يوفطري حقيقت نقل وي- كله بياانسان غواړي چي تر نورو خپل ځان ممتاز ثابت كړي ولي چي دارنګه دے لطف محسوسوي او خوند پرې اخلي- دا امتياز حاصلول هله ممكن وي چي ددۀ په وړاندي نور امتيازي مثالونه هم وي- دے له دغو مثالونو

نقل كوي، ګټه ترې اخلي او كله كله يې په نوي تشكيل تر هغو مخكښو هم مخته ولاړ شي له كومو چي دۀ نقل كاؤ- په څرګندون نمبر۲۷ کي د بېلا بېلو تخليقي محركاتو يو لښت ليک په دې غرض




څرګندون نمبر ۲۷ بېلا بېل تخليقي محركات

وړاندي كړل شوے دے چي دا پيچلے بحث لږ په آسانه شي- په دغه لښت ليك كي د هغو اوو تخليقي محركاتو فهرست دے چي دا وخت تر بحث لاندي دي-

په تخليقي محرکاتو کي دکمترۍ احساس هم د ډېرو نقادانو په نيز يو مهم محرك دے چي اديب په تخليقي عمل اماده ساتي- د اېډلر د کمترۍ د احساس نظريه[10] داده چي که چرته په يو کس کي څۀ کمي يا کمزوري وي نو هغۀ همېشه په دې کوښښ کي وي چي د خپل شخصيت دغه کمے يو رنګه پټ يا پوره کړي- کله يې په څۀ خاص لباس پټوي ، لکه ځيني مذهبي کسان چي له عامو خلګو څخه بېل لباس اغوندي- او کله يې بيا د فن او موسيقي په پرده د خلګو له نظرونو هوډر ساتي ، لکه چي په پښتني ټولنه کي ډېر معزوران سندري واي او يا موسيقاران دي- همدغه راز د اېډلر په نظر د کمترۍ احساس ځيني کسان په تخليق خوښ کاندي ولي چي دوی د خپل شخصيت يو نۀ يو کمے د تخليق په ذريعه پوره کول غواړي- کم سماجي حېثيت ، عضوي خامي ، او دمادي وسايلو کمے ټول په فرد کي د کمترۍ احساس راپاځوي ، ځکه نو ځان تر نورو خلګو ورته کمتر او حقير ښکاري- کله کله خو په شخصيت کي د دغه شان کمترۍ اظهار پخپله هم ترې وشي- دے فکر کوي چي که دغه مسئله ورته پېښه نۀ وای نو به دے هم د نورو خلګو په شان آسوده ، خوشحاله ، او مطمئن وای- دا د کمترۍ د احساس مثبت پهلو دے- منفي اړخ يې دادے چي په ردِعمل کي يې بېلابېل جُرمونه هم کېدلای شي-

تر دغو فلسفيانه نظريو وروسته د تخليقي محرکاتو په حقله نوري نظريئې هم مخته راغلې- د فرايډ[11] دا نظر ؤ چي تخليق د خوند

اخستلو يو بېل انداز دے- د دۀ 'دمتبادل آسودګۍ نظريه' دا وه چي تخليق كوونكے ترحقيقت پر واهمه او غوښتنه ځكه زيات زور وركوي چي دے د متبادل آسودګۍ په تلاش كي وي- چونكي د ناآسوده خواهشونو تر منځ دے په پرېشاني او په وهم كي وي ځكه نو د خپل تسكين دپاره دتخليق لار خپله كړي او اظهار يې په ځۀ نوي او بېل انداز وكړي- چونكي ځۀ نۀ ځۀ فطري حساسيّت[12] هم ورسره مل وي ځكه نو د واقعاتو اثر ډېر اخلي- د حالاتو تر دباؤ لاندي تخليق كوونكے داسي انداز خپل كړي چي د ځان سره سره د عامو خلګو د مسّرت باعث هم شي او د ځۀ وخت دپاره دباؤ ورباندي كم شي او اطمينان محسوس كړي- دا راز دے د خيالونو په دنيا كي هماغه ځۀ مومي كوم چي په حقيقت كي ورلره ممكن نۀ وي- حقيقت خو دادے چي احساس احساس دے[13] كه د كمترۍ وي او كه د ناآسودګۍ ، د نظر زاويه جوړوي- احساس د فكر او تجربې په مرسته د انسان د نظر زاويه سموي او دا رنګه د غوره تخليق موجب ګرځي-

تر فرائيډ وروسته دا نظريه وړاندي شوه چي د تخليق يو بل محرك اجتماعي لاشعور هم دے- ژونګ[14] د دغه تخليقي محرك مخكښ دے او دا خيال يې دے چي د ذاتي لاشعور په شان د خلګو اجتماعي لاشعور هم شته او دا د اسلافو څخه و نسلونو ته پاتيږي- اجتماعي لاشعور د فرايډ د ذاتي لاشعور څخه يو قدم مخ په وړاندي ځي او د خصوصي نفسي محرك په توګه تخليقي عمل ته قوت وركوي- دا په ځۀ خاص سيمه كي د اوسېدونكي يوۀ خاص خاندان

لاشعوري مېلان ظاهرَوي- ابتدايي ادب ښايي چي تر دغه اجتماعي لاشعور لاندي وده کړې وي- ژونګ دا هم يقين لري چي صحي اديب په اصل کي اجتماعي انسان دے-

لکه چي يې مخکي ذکر وشو ګېستالټ نفسيات[15] د يادابښت او ادراك په ګډون پر بېلا بېلو تخليقي محرکاتو ټينګار کوي- د نفسياتو دغي څانګي په جرمني کي ډېره وده وکړه ځکه نو هلته د کېرول د دې وينا ډېر علمي ارزښت دے چي" کُل دخپلو جُزونو تر مجموعې زيات وزن لري" معنا دا چي هره تخليقي او غېر تخليقي تجربه ځان لره خپل بېل حېثيت لري خو تأثر يې د خپلو جُزونو د مجموعي تأثر څخه بېل او ستر وي- خلګ يې د جزونو شعوري تجزيه کوي لګيا وي خو قدر يې د دغو جزونو څخه ډېر زيات وي- بيا د نفسياتو يو بل ماهر کرټ کوفکا (Kurt Koffka) پر ګېستالټ نفسياتو نور هم ډېر کار وکړ او په کال ۱۹۳۵ کي يې يو کتاب The Principles of Gestalt Psychology ورباندي چاپ کړ-

تر ساينسي تجربو وروسته، په امريکا او برطانيه کي د نفسياتو يو شمېر پوهان اوس دا عقيده هم لري چي لومړے اولاد ډېر ذهين او زياتره اديب وي- دوی دا نظر لري چي لومړي اولاد ته زياته توَجه ورکړل کيږي ځکه نو دا هم يو تخليقي محرك دے- د بېلګې په توګه د شېکيسپېر، اليکزنډر پوشکن او ګوئټې نومونه مخي ته راځي چي دوی د مور او پلار لومړي اولادونه ووځکه نو لوی لوی تخليق کوونکي هم شول-

د تخليقي محركاتو په حقله چي كومي نظريئې وړاندي كړلي شوې په هغوى كي هره يوه څۀ نۀ څۀ حقيقت خو لري مګر يوه هم حتمي نۀ شي ګڼل كېداى ولي چي د تخليق مُحركات د يوۀ پېچيده ذهني عمل[2] سره تړاو لري او دغه عمل د داخلي تخيُّل او انفراديت سره سره تر ډېره حده په اجتماعي خارجي ماحول پوري هم اړه لري- تخيّل دفكرتاِل دے چي د پرون د تېرو تجربو په رڼا كي د نن د تصّوراتو پر علمي سطح تعمير كوي- دا يوازي د تېر وخت د فكري تجربو ازانګۀ نۀ دے بلكي په دغه ترڅ كي د نوي تشكيل او تنظيم تقاضا هم كوي- دا تخليقي هم كېداى شي او غېر تخليقي هم- تخيّل يو داسي محرك دے چي پر اهميت يې له پېړيو را هسي بحث روان دے- د تخيّل خپل تركيب هم دومره ساده نۀ دے لكه چي په عامه توګه ګڼل كيږي بلكي دا يو ډېر پېچيده نظام لري- لكه چي بالا يې ذكر وشو اوّل اوّل يې د فلسفې تر اصولونو لاندي د تركيبي عناصرو وضاحتونه كېدل بيا د نفسياتو اوسني اصولونه هم وربانديي و ازمايل شول خو د تخيّل بشپړتفهيم بيا هم په ونۀ شو- تخيّل كله په محدود ذهن كي دلامحدوده خدايي قوّت په نامۀ ياد شوے دے او كله د ماضي په هينداره كي د مستقبل دعكس په توګه- تخليق كوونكے واقعي هم كله كله په خپل غېر معمولي تخيّل داسي ماورا تخليق وكړي چي دلوستونكو عقل ورته حېران پاته شي- ځكه نو ادبي تخليق د ډېرو پېچيدګيانو حامل دے-

په تخليقي محركاتو كي د تخليق كوونكي خپل داخلي انفراديت هم ډېر اهميت لري- نرګسيّت ، نفسي جوړښت او تخليقي

شعور واړه د دهٔ د انفراديت برخي دي چي په تخليقي عمل کي د منفرد اظهار سامان ګڼل کيږي او دټولني سره د دهٔ د رابطې کار هم ورکوي- د اديب نرګسي مېلان د دهٔ د خپل ځان سره د الفت عکاسي کوي- دا کله کله اديب د ځان د تسکين په دايره کي شکېل کړي او دابلاغو اهميت ورکم کړي- د دهٔ په نفسي جوړښت کي که د کمترۍ احساس وي او که نا آسوده خواهشونه ، دا د تخليق انفرادي محرك ضرور دے- دنفسي ساخت په حېث اديب يا تخليق کوونکے د ټولني يو داسي فرد دے چي د بهتر ذهانت ، تخليقي بصيرت او بېل صلاحيت په برکت د خپلو بېلا بېلو ناآسوده خواهِشونو تکميل د قلم له لاري کوي- تخليقي شعور يې هم په اظهار او اسلوب کي انفراديت پېدا کوي-

د اديب د داخلي انفراديت اوخارجي ماحول تر منځ تخيل يوه وسيله ده ، چي د تخليقي عمل په بشپړتيا کي مدد ورکوي- دخارجي ماحول دوې برخي دي- يوه برخه يې هغه ده له کومي چي اديب وجدان اخلي او تخيّل يې پر تخليق راپارَوي- بله برخه يې په لوستونکو پوري اړهٔ لري چي د تخليق څخه کوم اثر اخلي- دا ضروري نهٔ ده چي لوستونکے د تخليق څخه هماغه اثر واخلي کوم چي د اديب مقصد دے- لوستونکے د خپل ماحول په حساب د تخليق څخه استفاده کوي- هغه د تخليق کوونکي د وجدان څخه بېل نفسياتي جوړښت لري ځکه نو په خپل حساب ورته ګوري- چونکي اديب د ماحول له دغو دواړو برخو څخه اثر اخلي ځکه نو په تخليقي

عمل کي آزاد نهٔ وي بلکي د تخيّل په اظهار کي د ډېرو نفسياتي مسئلو سره مخامخ وي-

لنډه دا چي تخليق يو ډېر پېچيده عمل دے او محرکات يې هم دومره ساده نهٔ دي چي په څوکرښو کي بيان کړل شي ، خو بيا هم ذاتي انفراديت ، بېل تخيّل ، کوګنيشن او خاص ماحول يعني اجتماعي لاشعور هغه مغزن محرکات دي چي په ادب کي خوند او رنګ پېدا کوي- اديب ځکه تخليق کوي چي دے په نفسياتي توګه تخليق کولو ته اړ وي- دغه اړتيا يې په خپل شعوري کنټرول کي نهٔ وي ځکه يې نو محرکات هم د دهٔ تر وس وتلي وي- معياري تخليق يوازي په شعوري کوښښ نه کيږي ، څهٔ نهٔ څهٔ لېونتوب ضرور ورسره مل وي چي **تخليقي عمل** د معيار ترحده رسَوي- معياري تخليق پر ټولنه هم خپل اثرات لري- که څهٔ هم زياتره خلګ تخليقي مواد د وخت تېرولو په غرض لوَلي خو بيا هم د ذوق لرونکو لوستونکو کمے نشته- غوره ادب يوازي دلوستونکو دساتېري دپاره نهٔ وي بلکي د هغوی ذهني تربيت هم کوي- ستر فکر ، نوے انداز ، بېل احساس اوښکلے تحرير دلوستونکو دنفسي آسودګۍ باعث هم وي-

## اخځليك


1- جارج ويليم فريډرك هېګل ، "The Science of Logic" يعني د استدلال ساينس ، آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۸۷

2 - کالوين ويليم ، 'دماغ څنګه فکر کوي (How Brain Thinks)

بېسيك بُكس ، د اشاعت كال ۱۹۹۶

3 - جېمز ويليم ، ’پرگمتېيزم : د زاړۀ فكر نوے نوم ‘

(Pragmatism: A New Name for Old Ways of Thinking)

پېنگوين بكس ۱۹۰

4 - اېنډرسن جان ، كاگنيټيو سايكالُوژي ، (Cognitive Psychology)

ځلورم ايډيشن ، فري مېن ۱۹۹۵

5- گاكروگر ، ستيفن (Descartes: An Intellectual Biography )

يعني د ډسكارټس علمي سوانح ، آكسفورډ يونيورسټۍ پرېس ، ۱۹۹

6- برټرېنډ روسل ، ’د ذهن تحليل (The Analysis of Mind) ‘

روټلېج (Routledge) لندن ، ۱۹۹۲

7- غوث خېبري ، ’پښتانۀ د آريانه په كيسو كې ‘ اسد دانش مطبعه ، كلوله پُشته ملي ماركېټ ، كابل ، ۲۰۰۹

8- ډيورانټ وِل ، د تاريخ اتلان (Heroes of History )

ژباړن ياسر جواد ، نگارشات ، لاهور ، ۲۰۰۶ —

9- ډيورانټ ول ، د تهذيب قصه( The story of civilization )

جلد اول ، نيويارك ، ۱۹۴۲

10- ډايچيز ، ډېّيډ ، (Critical Approaches to Literature)

يعني د ادب تنقيدي اړخونه ‘ دوهم اېډيشن ، لانگ مېن ۱۹۸۱ -

11 - موكن هاپټ ، ’ سيگمنډ فرايډ: د لاشعور پلټونكے ‘ ،

(Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious)

آكسفورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۹

12 - لېنگر سوسنې ، احساس او سانچه ، (Feeling and Form) ، ۱۹۵۳

3 - لېنګر سوسنې ، (Mind:An Essay on Human Feeling)

يعني ’ ذهن: پر انساني احساس يو مضمون‘ دوه ټوکې ، ۱۹۶ - ۱۹۲

۱۴- ژونګ کارل ګستاؤ ، Man and his Symbols يعني

’ انسان او د دهٔ علامات‘ ، ډبل ډې ، ۱۹۶۹ ،

دوهم ا شا عت ليورليف ۱۹۹۷ —

۱۵- هاك ، راګر- ’څلوېښت مضمونونه کومو چي نفسيات بدل کړل‘ ،

(Forty Studies that Changed Psychology: Explorations

into the History of Psychological Research. 3rd ed)

درېيم اېډيشن ، پرېنټس هال ، ۱۹۹۸

* * *

# تخليقي عمل

د تخليقي عمل په وخت کي د تخليق کوونکي نظر، تر څهٔ بېل احساس لاندي، د همه واړو فکري قوّتونو په ګډون، پر يوهٔ خاص ټکي مرکوز وي- د دهٔ تخليقي شعور، ذهني مېلان او نفسي توانايي ټول د نظر په سمه زاويه ديوهٔ نوي شهکار په جوړېدو لګيا وي[1]- داګمان چي تخليقي عمل يوازي په ' آمد'پوري اړه لري، صحي نهٔ دے- لکه وړاندي چي يې ذکر وشو د تخليقي عمل بېلا بېل محرکات دي او نفسياتي تجزيه دا ښئي چي تخليق کونکے په تواتر سره د تخليق په هلو ځلو وي- کله چي يې په خواوشا کي بېلا بېل واقعات د احساس تارونه وخېږي نو په شعوري توګه تخليقي عمل پېل کړي- زياتره خودے د خپلو نفسي مېلاناتو اظهار په آساني کوي لګياوي خو کله کله داسي هم وي چي په څهٔ نهٔ څهٔ وجه د خپل احساس اظهار ورته خنډ شي نو بيا د لاشعور په مرسته د بېلابېلو علامتونو څخهٔ مدد اخلي- ځکه نو په تخليقي عمل کي شعور او لاشعور دواړه سره مله وي- د شعوري کوښښ سره سره لاشعوري عمل هم دننه

په مخفي توګه لګياوي خپل کار کوي- صنف که هرڅهٔ وي شعور يې وَضابطو ته ترتيب ورکوي- کوم نفسياتي مېلانونه چي له لاشعوره ترزېر شعورپوري را ورسيږي نوبيا واظهار ته بې تابه او چمتو وي- ځکه خو به نامتو رېشنليسټ فلاسفر رېني ډيکارټ[2] يا ډسکارټس ويَل چي "Cogito ergo sum"- يعني زهٔ فکر کوم ځکه خو زهٔ يم- د دغه لاطيني قول انګرېزي ژباړه وروسته څهٔ په دې ډول شوې وه چي"I think therefore I am" او د ډسکارټس دغه قول تر اوسه لا هم په مغربي فلسفه کي لوړ مقام لري- د دهٔ په نظر فکري نظام د يوهٔ کس د شتون حقيقي ثبوت ورکوي-

په لاشعور کي بې شمېره اميدونه ، خواهشونه ، پښېمانۍ او ستومانۍ د محرکاتو په توګه تخليقي عمل ته قوت ورکوي او ازانګې يې تر ډېره وخته ځي راځي- کله کله تخليق کوونکے ځکه تر اعصابي فشار لاندي ښکاري چي په تخليقي عمل کي يې شامل عمل او ردِعمل متوازن نهٔ وي او دغه بې قراري يې تر هغه وخته وي تر کومه چي يې تخليقي عمل بشپړ شوے نهٔ وي[3]- د دهٔ په دغه تخليقي عمل کي احساس ، فکر او تجربه درې واړه شامل وي- په تخليقي عمل کي يو خاص احساس ، د تخليق کوونکي فکر و تخليق ته را اړَوي او د دهٔ تخليقي شعور ، ذهني مېلان او نفسي توانايي ټول د تېري تجربې پر بنسټ سره را يو ځای کوي چي تخليق په بشپړ شي- کله کله په تخليق کوونکو کښي څهٔ داسي ماورايي کېفيت هم ليدل کيږي چي تر ډېره حده د صوفيانو او پيرانو وجذب ته ورته وي- دغه سرمستي په

دواړو صورتونو کي يونفسياتي عمل دے- لکه چي په ځرګندون نمبر۲۸ کي ليدل کيږي ، احساس ، فکر او تجربه درې واړه په




ځرګندون نمبر ۲۸ د تخليقي عمل خاص خاص داخلي ترکيبي اجزا

تخليقي عمل کي خپله خپله برخه لري خو دا عمل دومره ساده هم نۀ دے لکه چي ښکاري- د طريقت د لاري د يوۀ صوفي په شان کله کله تخليق کوونکے هم د يوۀ بېل کېفيت سره مخامخ شي- لکه چي يوې خواته د خدای د عظمت په لامتناهي سلسله کي د صوفي د غرقېدو امکان وي همدغه شان بلي خوا ته 'ځان هېرېدل' يا خودفراموشي د لاشعور په وسعتونو کي د تخليق کوونکي د ډوبېدو په وجه ممکنه ده- تخليق کوونکے زياتره په دې خبر هم نۀ وي چي په لاشعور کي کوم تخليقي عمل روان دوان دے او د تخليق نوعيت

به څۀ وي- دے په حتمي توګه خپله هم تر هغه وخته هيڅ نۀ شي ويَلاى ترڅو چي يې تخليق بشپړ شوے نۀ وي-

تخليق کوونکي لره د تخليق د پاره خارجي يا داخلي محرك ضروري وي- له بې شمېره خارجي تخليقي محرکاتو څخه تش يو هم د تخليق دپاره بس وي- د بېلګې په توګه تخيّل يو محرك دے چي د تېرو تجربو په رڼا کي د تخليق کوونکي د تصّوراتو تعمير کوي او پر تخليق يې را پارَوي- د تېر وخت د فکري تجربو ازانګۀ د تخليق کونکي ذهن په دې اماده کاندي چي د څۀ تشکيل او تنظيم په هيله نوے تخليق وکړي-

لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، تخليق يو پېچيده عمل دے او محرکات يې هم دومره ساده نۀ دي چي په آساني وشمېرل شي- تخيّل ، ذاتي انفراديت او خارجي ماحول واړه په تخليق کي اثر ، معيار ، خوند او رنګ پېدا کوي[4]- تخليق کول د تخليق کوونکي مجبوري وي ولي چي دے په نفسياتي توګه ورته اړ وي- ځکه نو د تخليق مُهم خصوصيت دا دے چي د تخليق کوونکي د نفسي آسودګۍ[5] سره سره پر لوستونکو ، اورېدونکو او کتونکو اثر ولري او ردِعمل هم پکښې پېداکړي- د تخليق په معيار کي همدغه خيز مهم دے چي خاص وزن لري ،کنې يوازي د ځان د نفسي آسودګۍ موخه تر سره کول څۀ ډېر ګران کار نۀ دے-

تخليق کوونکے چي په کوم وطن کي اوسي او په کومه ټولنه کي ژوند کوي ، تخليق يې د هماغي سيمي د اجتماعي شعور مظهر

وي- لكه چي په داخلي توګه مخكي د كس په نفسياتي جوړښت كي د اجتماعي لاشعور[6] ذكر شوے ؤ، همدغه شان په خارجي توګه د اجتماعي شعور اهميت څرګندول لازمي ګڼم چي د مسئلې بشپړ وضاحت په وشي- تخليق د يوې سيمي د ټولنيزو ارزښتونو سره سره د اديب د وطن، كلتور او تهذيب هينداره هم وي- تخليق كوونكے د خپل دور د عالمي او كائناتي اثراتو څخه هم كله ځان لري نۀ شي ساتلاى- د دۀ تخليق د خپل دور يا پېر په دايره كي د ننه وي او دا اندازه په آساني سره لګېداى شي چي دغه د كومي سيمي او د كوم دور تخليق دے-

د فرد مثال د ټولني په جوړښت كي د يوې خښتي دے، چي د خپل انفرادي حېثيت سره سره معاشره ساز هم دے - دا د خښتي په شان يو بې جانه غوندي څيز نۀ دے بلكي يو جانداره ، توانا او باعمله عنصر دے چي د عمل او ردِعمل پُوره پُوره صلاحيت لري- كله د ردعمل په توګه د ټولني سره ښكر په ښكر شي او بغاوت ترې وكړي او كله بيا د ټولني د تطهير په غرض د تخليق لاره خپله كړي- تخليق كه څۀ هم په ظاهره يو انفرادي عمل دے خو اثرات يې په هره توګه اجتماعي دي- فرد تخليق يوازي د خپل داخلي تسكين دپاره نۀ كوي بلكي دا د تخليق كوونكي د ټولني سره د نفسياتي تړاؤ مظهر دے- دغه نفسياتي تړاؤ يې په تخليق كولو خوښ كاندي- كله چي په ټولنه كي انتشار وي او پر لاندي سطحه يې د خلكو جبلي تقاضې، خواهشونه او موخې د بهاندو اوبو په شان په يوه خوا رواني

نۀ وي نو بيا حتماً تصادم راپاڅوي اود نورو کسانو په شان تخليق کوونکے هم اثر ترې اخلي- ځکه نو دا لازمي نۀ ده چې هر تخليق دي متوازن هم وي ، ولې چې داپه داخلي اوخاريجي حالاتو پورې اړه لري-

کلتور او ثقافت هغه رنګونه دي چې په ټولنه کې ښکلا او خوند دواړه وده په کوي ، ځکه نو هر اديب د خپل کلتور او ثقافت تر ېېلا ېېلو اثراتو لاندې وي- د انفرادي فکر سره سره تخليق کوونکے زياتره د اجتماعي قدرونو تر ژورو اثراتو لاندې هم ليدل کيږي[7]- کله کله داسې هم وي چې د کلتور او ثقافت پر نامۀ په ټولنه کې د عمل او ردِعمل په نتيجه کې نابَبره يو انتشار راپيدا شي او د خلګو د آرزوګانو ، جبلي تقاضو او ېېلا ېېلو موخو ترمنځ ټکراؤ ښکاره شي- په دغسې حال کې کۀ څۀ هم تخليق کوونکے ترې منفي اثر اخستلای شي خو د زياترو پخو تخليق کوونکو فکر تر جذباتو بالا وي ، د نظر زاويه يې فلسفيانه او منطقي وي ، ځکه نو د انتشار ادراك ورته وشي او خپله قبله سمه کړي-

تهذيب[8] يو پراخ تناظر لري- دا يوې خواته د اديب په ذهن کې د کلتوري سانچو په جوړښت کې برخه اخلي او بلې خوا ته يې روحاني او اساطيري ورثه محفوظه ساتي- د تخليق په اړه د تهذيب کردار اساسي نۀ دے بلکې اضافي دے ځکه يې اثرات تر ډېره حده مخفي غوندې وي- اديب ګټه خو ترې اخلي مګر په شعوري توګه يې احساس ورته ډېر کم وي- د دې مثال د دنګو غرونو د اوږدو اوږدو سلسلو دے چې بې شمېره ښېلې ، مندونه او رودونه ترې را وځي او

بیا د سیند په شکل سره را یوځای شي او پر هواره ځمکه ترې ګټه اخستله کیږي-

د تخلیق کوونکي د تخلیق د معیار تعیُن د دهٔ د وخت ، پېر یا دور په لحاظ کیږي- په کوم پېر کي چي پخوا تخلیق شوے وي د هماغه دور رنګ پکښې لیدل کیږي- لکه چي د تېر وخت تاریخ د هغه مهال د حالاتو پته ورکوي همدغه شان ادب د خپل دور هینداره بلل کیږي- د هغه دور د ښهٔ او بد معیار به له اوس وخت ثخه یقیناً بېل وي- ځکه نو لکه چي په ځرګندون نمبر۲۹ کي ښکاري ، دا په یقین سره ویَل کېدای شي چي تخلیق کوونکے په تخلیقي عمل کي د




ځرګندون نمبر ۲۹ پر تخلیق کوونکي د خارجي ماحول اثرات

خپلي ټولني ، کلتور او تهذیب سره سره د خپل دور تر اثر لاندي هم وي- دے به د خپل وخت یا دور د ملکي ، علاقایي او عالمي حالاتو سره سم تخلیق کوي- دا هیڅ امکان هم نهٔ لري چي ادیب دي د

خپل وخت د همه واړو اثراتو څخه ځان بېل وساتي او تخليق دي يې د هره لحاظه نوے او آزاد وي- که يې د تخليق انداز هر څومره بېل او نوے هم وي خو په هر حال به د خپل دور په دايره کي د ننه وي او دټولني ، کلتور او تهذيب اثرات به ورباندي ښکاره وي- د ادب تاريخ ګواه دے چي په درستهٔ پېړۍ کي يو يا دوه ستر تخليق کوونکي پېدا کيږي- سرکاري سرپرستي ، تمغې ، بهرنۍ دورې ، سياسي نعرې او د مېډيا تشهير تر څو ورځو وي ، دا نهٔ خو تخليق ته معيار ورکولای شي او نهٔ تخليق کوونکي ته بقا- معياري تخليق خو په لاشعور کي د زړهٔ په وينه پايي او بيا په تورتمونو کي د څراغ په شان ځليږي ، چي په رڼا يې راتلونکي نسلونه سمي لاري لټوي-

د تخليق ارزښت تر ډېره حده په دې پوري اړه لري چي دا د ټولني په ګټه دے او که نهٔ- له پخوا څخه د ادب اخلاقي ارزښتونه د پوهانو تر بحث لاندي راروان دي- تر مذهبونو وړاندي د آريانا په کيسو کي د ا خلاقي ارزښتونو کرښي شته- په اوېستايي دور کي خو داسي ښکاري چي د ښهٔ او بد ، ريشتيا اودروغ ، حق او باطل بحث عام ؤ- په وېدي سرودونو کي هم د اخلاقي قدرونو ذکر شته- په يونان کي د هومر Homer[9] شاعري د خپل وخت د اخلاقي قدرونو پر تمبو ولاړه ده- داسي برېښي چي د سُقراط ، افلاطون او ارسطو تحريرونو د هومر د فهم ، علم او دانش تر سايه لاندي وده کړې وه- کهٔ څهٔ هم شاعري او فلسفه دوه بېل څيزونه دي خو د سُقراط ، افلاطون او ارسطو په فکري تشکيل کي يوازينے لوی محرك د هومر شاعري وه-

دوی ټولو هومر د هغه وخت یو عظیم شاعر منلے ؤ ، او اختلاف يې هم د احترام په دايره کي دننه ورسره کاؤ- د دۀ دوه اوږدۀ نظمونه اوډيسې او ايليډ له اتمي مخزپردي پېړۍ راهيسي د عالمي ادب پر اسمان د ځلاندو ستورو په شان برېښي- هومر که څۀ هم نابينا ؤ خو د زړۀ په سترګو يې ډېرڅۀ ليدل- دے په خپل يوۀ نظم کي د اپالو په معبد کي کارکوونکو پېغلو انجونو ته داسي مخاطب دے:

" کله څوك د اپالو زيارت ته راشي
او تپوس وکړي له تاسو
چي اے پاکو ښکلو پېغلو!
دلته کوم هغه شاعردے
چي تر ټولو معتبر دے
نو ځواب ورته دا ورکړئ
چي هماغه نابينا دے
چي د چيوس( Chios )غرونو کي اوسي
چي يې شعر او سندري
همېشه وي ملغلري"

د هغه وخت په شاعري کي هم اخلاقي ارزښتونه له ورا ښکاري- ځکه نو د ادب په تاريخ کي د اخلاقي قدرونو له اهميت څخه هيڅ انکار نه شي کېدلای- د يونان تاريخ ګواه دے چي بيا د افلاطون[10]

په وخت کي هم په ادب کي د اخلاقي ارزښتونو بحث ډېر اهميت درلود- د دۀ په نظر ادب د فلسفيانه صداقتونو د تشهير يوه ذريعه وه او د اخلاقي ارزښتونو د ترويج په موخه استعمالېدلای شوه- په بله معنا افلاطون تخليقي عمل د اخلاقي مقصدونو طابع کول غوښت- دے پخپله په 'جمهوريه' کي د غوره ټولني د ښېلا ښېلو غړو په تذکره کي ، په ادب کي پر اخلاقي ارزښتونو ډېر زور ورکوي- دۀ پر دې خبره ټينګار کاؤ چي غوره ټولنه هماغه وخت امکان لري کله چي يې په ترکيب کي اعلیٰ اخلاقي قدرونه ، او مِلي مقاصد شامل وي- د دې دپاره ، د دۀ په نظر د ماشومانو په درسي کتابونو کي يوازي هغه داستانونه شاملول په کار دي په کومو کي چي غېراخلاقي مواد نۀ وي- افلاطون د غوره ټولني د تشکيل په موخه تعليم له هر هغه مواد څخه صفا کول غوښت کوم چي د ماشومانو تربيت لره ښۀ نۀ ؤ او په ذهني نشونما کي يې خنډ ګڼل کېدو- په تخليقي عمل کي د ښۀ او بد يا د نېکۍ او بدۍ بحث له پېړيو راروان دے- په هره ژبه کي ښېلا ښېل تخليقات شوي دي او هر تخليق په څۀ خاص دايره کي خپل اثر لري- يوه ډله چي په خپل خاص فکر کوم تخليق ته ښۀ وايي هماغه تخليق د بلي ډلي په نظر ښۀ نۀ وي ولي چي ددواړو ډلو دنظر زاويه يوه نۀ وي- تخليق او اخلاق ، ادب او فحاشي ، غوره ادب ، متروك تخليقات او داسي نور ډېر موضوعات زياتره تر نظر تېرېږي خو دغه ټول عمومي بحثونه د څۀ خاص موخې په ترڅ کي ليکل شوي وي- څۀ علمي يا ساينسي بنسټ يې نۀ وي-

انسان چي په کومه ټولنه کي اوسي د هماغي څخه بېلا بېل اثرات اخلي- د کومو خلګو سره چي ژوند کوي د هماغو په خوی او بوی شي- دے په شعوري او غېرشعوري توګه د هغوی د عادتونو اوخيالونو څخه اثر اخلي[11]- يوې خواته د مشرانو له ويري ډېر عادتونه پرېښوولو ته تيار وي او بلي خواته د دوی د خوښې عمل کولو ته اړتيا لري- تخليقي عمل هم د ټولني له اثراتو څخه مُبرا نۀ وي- که هر څو تخليقکار د عالمي ادب په هلوځلو وي خو بيا يې هم په تخليقاتو کي ټولنيز رنګ غالب وي ، ولي چي دے په همدغه ټولنه کي ژوند کوي- هسي خو ادب د ځانې د خوبونو ازانګۀ دے او ځواني هر ځای ځواني وي مګر د خوبونو مثال د هغو بېلا بېلو غړونو په شان دے کوم چي کله کله په مېلو کي اورېدل کيږي او تر هغه وخته غوږ درباندي نيول ضروري نۀ وي تر څو چي يو خاص غږ څوك متوجهه نۀ کړي- دغه توجه په شعوري توګه وهغي رشتې ته اشاره کوي کومه چي اورېدونکے يې د دغه غږ سره لري- په تخليقي عمل کي همدغه ټکے مهم دے چي د لاشعور هر غږ اديب په تخليق نۀ آماده کوي بلکي په دغو غږونو کي يې د پام وړ هماغه غږ وي چي دے په شعوري توګه تړاو ورسره لري- تخليقي عمل يو کثيرالمقاصد عمل دے ځکه دا فکر صحي نۀ دے چي تخليق يوازي د 'آمد' نوم دے او 'خوندَورحېرت' پېدا کول يې دمعيار يوازينې ګچه ده- دا هم دُرست نۀ دے چي تخليقي عمل فقط د اخلاقي ارزښتونو د ترويج په موخه استعمال کړل شي ، لکه چي د افلاطون نظر ؤ-

په تخليقي عمل کي د هر ليکوال خپل بېل ذهني مېلان وي- څوک د شاعرۍ انتخاب وکړي ، څوک افسانه ليکي څوک ډرامه او څوک ناول د تخليقي صنف په توګه خپل کړي- کله کله داسي هم وي چي يو تخليق کوونکے په دوو بېلا بېلو صنفونو کي ليك کړي- په پښتو کي شاعري ډېره شوې ده مګر افسانه ، ډرامه اوناول بېخي کم کم ليدل کيږي- نکلونه او داستانونه له پخوا څخه د پښتو ليټرېچر برخي دي خو ناول او ناولټ د اوسني وخت نوي صنفونه دي او په پښتو کي خال خال ليدل کيږي- زاړۀ تخليقونه زياتره د خلګو د درد ، غم ، بې بسۍ او بربادۍ اظهار کوي- داسي برېښي چي شاعري او نثر دواړه د دنيا د بېلا بېلو غميزو خزانې دي- اخلاق ، مذهب ، ټولنه او جماليات په نوي ادب کي مهم دي- د انسان دلاشعور په ساخت کي په نفسياتي توګه د تخليقي سانچو[12] شتون د جمالياتو په اصولونو کي يو داسي انقلاب راووست چي ادب يې د ساينس تر څنګ ودراؤ-

که څۀ هم د ادب د بېلا بېلو اصنافو په حقله د پخوا څخه مشرقي او مغربي ادب پوهانو ډېراساسي بحثونه څېړلي وو خو د 'خاص ذهني کېفيت' تر ذکر مخته يې نور څۀ معقول وضاحت نۀ ؤ کړے- د ميني ، خيال ، جذبې ، جنون او عقيدت په حقله يې ډېر سوالونه راپاڅولي وو خو د لاشعور ، اجتماعي لاشعور او تخليقي سانچو نفسياتي توضيح غوندي څۀ منطقي څيز يې وړاندي کړے نۀ وو- جديد نفسيات نۀ يوازي د تخليق کوونکي د خاص ذهني کېفيت وضاحت کوي بلکي دا هم ښئي چي تخليق د لاشعور د تسکين يو

ښکلے انداز دے- تخليق د خوب غوندي بې ترتيبه څيز نهٔ وي بلکي د تخليق کوونکي د خپل تنقيدي شعور تر اثر لاندي ، د ادبي قدرونو په سايه کي او د نظر په خاص زاويه تيار شوے يو شاهکار وي-

لنډه دا چي د ژوندانهٔ يوه نهٔ يوه وقوعه کله کله د احساس تارونه څېړي او د تخليق کوولو فکر ته بلنه ورکوي- څکه نو غوره تخليق تر ژور احساس لاندي په ستر فکر کيږي او د بېلا بېلو وختونو مشاهده او تجربه د تخليق کوونکي و داخلي تنقيدي شعور ته د قوت ورکولو سره سره د تخليقي عمل په بشپړتيا کي مرسته کوي- عميق احساس لکه ښکلا ، درد او مينه د تخليق کوونکي فکر په تخليق آماده کاندي- فکر د جذبې او استدلال تر منځ معقوليت ته بلنه ورکوي- احساس فکر او تجربه درې واړه په ګډه د نظر زاويه سموي څکه نو د **تخليقي معيار** مهمي پېمانې هم دي- تخليق هله معياري يا غوره ګڼل کيږي چي بنسټ يې پر ريشتيا ولاړ وي او يو خاص خوند پکښې وي-

## اخځليك


1 - اپنډرسن جان ، کاګنيټيو سايکالُوژي ، (Cognitive Psychology) څلورم ايډيشن ، فري مېن ١٩٩٥

2- ګاکروګر ، سټيفن (Descartes: An Intellectual Biography ) يعني د ډسکارټس علمي سوانح ، آکسفورډ يونيورسټۍ پرېس ، ١٩٩٠

3- ډيشيز ، ډېويډ ، (Critical Approaches to Literature) يعني ' د ادب تنقيدي اړخونه ' دوهم اېډيشن ، لانګ مېن ١٩٨١ -

4 - برټرېنډ روسل ، 'د ذهن تحليل (The Analysis of Mind) ' ،

روټلېج (Routledge) لندن ، ۱۹۹۲

5- موکن هاپټ ، ' سیګمنډ فرایډ: د لاشعور پلټونکے ' ،
(Sigmund Freud: Explorer of the Unconscious)
آکسفورډ یونیورسټی پرېس ۱۹۹۹

6- ژونګ کارل ګستاؤ ، Man and his Symbols یعني
' انسان او د دهٔ علامات ' ، ډبل ډې ، ۱۹۶۹ ، دوهم ا شا عت لیورلیف ۱۹۹۷

7- لېنګر سوسنې ، (Mind:An Essay on Human Feeling)
یعني ' ذهن: پر انساني احساس یو مضمون ' دوه ټوکې ، ۱۹۶ - ۱۹۲

8- ډاکټر باقي دراني ، 'پښتانهٔ د تهذیب په څپو کې ' صحاف نشریاتي موسسه
کاسي روډ کوټه ، ۲۰۰۸

9- احمد عقیل روبي ، 'علم و دانش کے معمار '
نېشنل بك فاونډېشن ، اسام آباد ۲۰۱۱

10- ډیورانټ وِل ، د تاریخ اتلان ( Heroes of History ) ژباړن یاسر جواد ،
نګارشات ، لاهور ، ۲۰۰۶ —

11- کالوین ویلیم ، 'دماغ څنګه فکر کوي How Brain Thinks
بېسیك بُکس ، د اشاعت کال ۱۹۹۶ —

12 - لېنګر سوسنې ، احساس او سانچه ، (Feeling and Form) ، ۱۹۵۳

⋆ ⋆ ⋆

# تخليقي معيــار

تخليق د نورو تحريرونو څخه ځکه بېل وي چې دا د يوې نۀ يوې وقوعې تر اثر لاندي د لاشعور له شکمه زوکړېــے وي، تر تنقيدي شعور لاندي يې خاپوړي کړي وي، د ادبي قدرونو په سايه کي يې پل اخستے وي او د نظر په سمه زاويه وده کوي[1]- معياري تخليق کله د ښکلي الهامي خيال په نتيجه کي منځ ته راشي او کله بيا تر ژور احساس لاندي را وپاڅي او بيا په ستر فکر او ځانګړي تنقيدي شعور معقول ترتيب ومومي- د تخليق کوونکي تجربه او مشاهده هم په دغه تخليقي عمل کي د دۀ مرسته کوي-

د ښکلي الهامي خيال او د 'موجود خيال' تر منځ توپير شته- د ښکلي مطلب دادــے چې نوــے او ښايسته تشکيل او تنظيم يې شوــے وي او د الهامي مطلب دا چې نوښت يې يوازي د نوي تشکيل او تنظيم پوري محدوده نۀ وي بلکي تخليقي اړخ يې دومره بېل وي چې د دۀ په تېره تجربه يې څۀ مثال نۀ شي ورکړل کېداى-

موجود خيال په اصل کي د نقالۍ يو ښېل شکل دے په کوم کي چي تخليق کوونکے د بل شاعر، اديب ، فنکار، يا تعمير کوونکي د خيال نوے تشکيل او تنظيم کوي[2]- د خپل تخليق په حقله د تخليق کوونکي نظر زياتره ډېر لوړ وي- د پښتو متل دے چي "کارګۀ وايي زما سپينکے زوی او زيږکے وايې زما پستوکے زوی" يا بيا دا چي " هر چا لره خپل وطن کشمير دے" - د دغو متلونو په مصداق هر چا ته خپل تخليق معياري ښکاري- که تخليق هر څومره سطحي وي خپل تخليق کوونکي ته ښۀ ايسي- که يې هر څومره مسلّمه تخليقي ارزښتونه تر پښو لاندي کړي وي، دے يې بيا هم په هره توګه مدافعت کوي- همدغه راز د نقاد خپل ښېل نظر کېدای شي- دا قوي امکان لري چي شخصي خوښ او ناخوښه به يې هم وي- ځکه نو د معيار په حقله يو نظر ډېر کم امکان لري- زه فکر کوم چي د هر تخليق د معيارڅلور ښېلا ښېلي برخي دي- په يوه برخه کي يې تخليق کوونکے پخپله اوسي، په بله کي يې نقاد ناست وي، په دريېمه برخه کي يې تاريخي شهادتونه مېشته وي او څلورمه برخه يې پرحقيقتونو مبني وي- لکه چي په څرګندون نمبر ۳۰ کي ښوول شوي دي د تخليق حقيقي معيار زياتره د تخليق کوونکي ترخپل نظر او د نقاد تر ځانګړي نظر زياتو کم وي- دغه کمے او زياتوالے يې د تخليقي تاريخ[3] او عالمي تخليقي اصولونو[4] په رڼا کي په آساني ليدل کېدای او لري کېدلای شي-




څرګندون نمبر ۳۰ تخليقي معيار

تخيّل د فلسفې ، ادب او نفسياتو يو داسي موضوع ده چي خپل اوږد تاريخ لري- دا په انساني ذهن کي د بېلا بېلو تصوّراتو يوه لامتناهي سلسله ده- په فلسفه او ادب کي د تخيّل بېلابېل توجيهات دي خو په نفسياتي توګه دا هم څۀ الهامي خيز نۀ ښکاري بلکي د تېر وخت د بېلا بېلو تجربو ازانګه ده[5]- الهامي څکه ورته ويل کيږي چي دا ازانګۀ کله کله د خوبونو په شان په ډېر بېل او بېخي نوي غوندي رنګ کي بېرته راشي- څکه نو په فکري توګه د تېر وخت تجربې د تصّوراتو په شکل کي په کار راوستل او نوے شکل ورکول په اصل کي تخيّل دے- کوم څۀ چي له ازّله اورېدل کيږي ، ليدل کيږي ، خوړل کيږي او محسوسيږي هماغه د تصوّراتو په څير تر ابده د انسان سره مله وي- تخليق کوونکے يې د نوي وخت او نوي ماحول

په تناظر کي نوے تشکيل او تنظيم کوي[6]- دے که په خپل روح کي څۀ الهام غوندي څيز محسوسوي نو وجه يې هماغه زړه تجربه وي چي دۀ په خپل ماحول کي له کلونو حاصله کړې وي- د ديبانو، پېريانانو، پيرانو، مرشدانو، پهلوانانو د داستانونو سره سره دۀ د ملايکو او فرشتو ذکر هم په بېل بېل انداز اورېدلے وي- د خوبونو د تعبيرونو او د نبيانو د کيسو بې شمېره رنګونه يې په تجربه کي وي- د خداى او خدايي په اړه يې له خلکو نه په بېل بېل انداز ډېر څۀ اورېدلي وي ځکه يې نو د تخيّل نوے تشکيل په همدغو رنګونو کيږي- نوے تنظيم يې د ماحول تر اثر لاندي، له دغو بېلا بېلو څيزونو څخه کيږي ځکه يو نوے شے ترې جوړ شي- د تخليق کوونکي کمال دا وي چي دے دغه څيزونه د ذهن په تخليقي خاکو کي، په ورو ورو تړکو په داسي انداز پېيي چي کله کله عقل هم ورته حېران پاته شي[5]- همدغه د تخيّل تخليقي قوت دے چي تخليق ته معنا او معيار ور بخښي او لوستونکے له ځان سره په وړلو آماده کاندي- چونکي تخليق کوونکے د خپل نفسي واردات په پسِ منظر کي څۀ ليکي ځکه نو لوستونکے هم ورسره مل وي او اثر ترې اخلي- د بېلګې په توګه نکلونه، داستانونه، ډرامې، ناولونه او جاسوسي فکشن واړه پر تخيّل ولاړ دي-

د خيال تړاو د تخليق کوونکي په نفسي جوړښت[7] پوري اړه لري- د نفس په ساخت کي داسي بې شمېره څيزونه هم دي پر کومو چي د تخليق کوونکي د تخليقي شعور بنسټ ولاړ دے- د خپل ځان

سره الفت د تخليق کوونکي نرګسيّت بلل کيږي او دا هم د دهٔ د نفسي جوړښت برخه ده چي دے يې د خپل انفراديت د اظهار ذريعه جوړوي- همدغه نرګسيّت دے چي تخليقکار هر وخت په څهٔ نهٔ څهٔ کولو آماده ساتي- د تخليق معيار د کس په دغه انفراديت پوري هم اړه لري- ځان پېژندنه ، فکر انګېز بصيرت ، فنکارانه صلاحيت ، ستر ذهانت ، لوړ مقصديت ، ابلاغيت ، تنوع ، شخصي علامت فهمي او بېل اسلوب و تخليق کوونکي ته انفراديت وربخښي- غمګيني ، نغمګي او ځان خوښي د انفراديت پياوړي مثالونه دي- د تخليق کوونکي د انفراديت سره سره د لوستونکو ، اورېدونکو او ليدونکو حِسيات چونکي بېل بېل دي ځکه يې اثر هم ورباندي جدا جدا وي- ښايي چي معيار به يې هم د بېلا بېلو نقادانو په نېز يو نهٔ وي بلکي واضحه توپير به پکښې ليدل کېږي-

تخيّل له خارجي ماحول څخه خام مواد اخلي او همدغه يې د تخليقي وجدان يا الهام لويه ذريعه وي- تخليق کوونکے خارجي ماحول ته د نظر په خپله زاويه ګوري ، ولي چي دے د ژوندانهٔ خپل بېل تصور لري- که يې د نظر زاويه سمه وي نو د دهٔ عميق احساس د ستر فکر په مرسته يو غوره تخليق وکړي ، چي هم پکښې ريشتيا وي او هم خوند- که داسي نهٔ وي نو بيا کله کله تخليق کوونکے خارجي ماحول هم د خپل ذات په قفس کي بند کړي او هر څهٔ د دهٔ د نفسي هوډ په تنګه دايره کي دننه ليدل کيږي- په داسي حال کي تخليق کوونکے د خپل تخيّل په مرسته په تخليق کي څهٔ نهٔ څهٔ

ښكلا پېدا كړي خو كله چي تخليق د لوستونكو مخي ته راشي نو يې د ښهٔ او بد فېصله د اديب يا شاعر په حق كي نهٔ وي- ولي چي پرلوستونكو د تخليق كوونكي هيڅ كنټرول نهٔ وي- هغه چي كوم تحرير د وخت او ماحول په لحاظ په زړه پوري ګڼې هماغه خوښوي- دا هم لازمي نهٔ ده چي خلګ كوم تحرير خوښوي هغه دي معياري هم وي ، ولي چي معيار د نظر په زاويه پوري اړه لري- فطرت نګاري ، حقيقت ليكنه او واقعيت ليكنه پر تخليق د خاريجي ماحول اثرات ښئي او په ادب كي د مقصديت او افادې په خوا هڅه په كيږي- د ادبي تخليق معيار د تخيّل ، انفراديت او خارجي ماحول سره سره په نورو ډېرو ځيزونو پوري هم اړه لري- د تخليق كوونكي او لوستونكو تر منځ رشته يوازي پر خوند نهٔ ده ولاړه بلكي تخليق د لوستونكو ذهني تربيّت هم كوي- د لوستونكو شعور تر ډېره حده د مطالعې سره تړاو لري ځكه نو اديبان په خپلو نوو نوو تخليقاتو د لوستونكو شعوري تربيّت كوي- چونكي تخليق كوونكے د همدغي ټولني يو وګړے دے او له همدغه ماحول څخه اثرات اخلي ځكه نو د ټولنيزو تغيّراتو څخه آزاد نهٔ شي پاته كېداى- تخليق ، تخليق كوونكے او لوستونكي واړه د وخت په څپو كي په تواتر سره بهېږي او بدليږي- هر اديب په خپل نوي انداز په ټولنه كي د خاص ذوق لوستونكي پېدا كوي او بيا د نظر په خپله زاويه د هغوى شعوري تربيّت هم كوي-

د تخليق د معيار اړه په جمالياتو پوري هم ده- جماليات[8] د فلسفې هغه څانګه ده چي د ښكلا د احساس تفهيم كوي او د

ښايست د بېلا بېلو اړخونو سره يې ټينګ تړاو دے- په تخليقي نفسياتو کي د تخليق کوونکي ځانګړے جمالياتي حِس وتخليق ته هغه ښکلا ورکوي چي د دهٔ د خپل تسل سره سره د لوستونکو، اورېدونکو او ليدونکو تسکين هم په کيږي- تخليق چي په هره موخه کيږي، پرجمالياتي اړخ يې تله نهٔ شي تېرېدلای- په تخليقي عمل کي د ښکلا پيکر تراشل تر هر څهٔ ګران او مهم کار دے- په تخليق کي د ښايست احساس را پاڅول په څهٔ خاص ترتيب، تنظيم، تناسب ممکن دي او دغه تناسب يې په اصل کي د جمالياتي حِس د تسکين موجب ګرځي- دا تأثر صحي نهٔ دے چي ترتيب، تنظيم، تناسب او ربط يوازي په لوړو تهذيبونو کي ممکن دي- په اصل کي جمالياتي حِس هم پر خارجي او داخلي برخو وېشلے دے- خارجي برخه يې په فطرت، ماحول او تاريخ پوري اړه لري او داخلي برخه يې پر ذات يا نفس مشتمله ده- ټول انسانان د فطرت څخه د ښکلا د بېلا بېلو عناصرو د ترتيب، تنظيم، تناسب او ربط زدکړه کوي او فطرت د متمدن او غېرمتمدن قامونو مشترك ماخذ دے- ترقي يافته قامونه هم د فطرت، ماحول او تاريخ څخه د ښايست بېلا بېل علامتونه اخلي او په غېرمتمدنه ټولنه کي هماغه فطرت د ښکلا يو لوی ماخذ دے- ماحول او تاريخ يې جدا جدا دي ځکه يې څهٔ نهٔ څهٔ توپير جواز لرلای شي- داخلي نفسيات يې هم د انسان په حېث يو شانتي دي ځکه نو حُسن آفريني يوازي د ترقي يافته قامونو په برخه نهٔ شي کېدلای- البته په تخليق کي د ښايست احساس پېدا کول يو ټېکنيك

ضرور دے او ټېکنيکل کار په ترقي يافته معاشرو کي تر مذهبي او قبايلي ټولنو زيات په آساني کېدلای شي- ولي چي ښکلا تراشل ډېر نازك او پېچلې عمل دے-

تر تخيّل وروسته چي کله د تخليق کوونکي د تصوّر آس د اظهار منډي ته چمتو شي نو غوټې وهي- ټېکنيك يې قابو کوي او په اظهار کي يې جمالياتي ارزښت تر نظر لاندي ساتي- ځکه نو د ټېکنيك اساسي موخه د اظهار او ابلاغ د پاره معقوله او مخصوصه سانچه تيارول او تناسب ساتل دي- د' آرټ ' تورے له پخوا څخه د همدغه هنر په معنا رارون دے[9]- د تخليق کوونکي موخه چونکي د ښکلا په نوو نوو او بېلا بېلو کېفيّتونو د ذهنونو مسحور کول دي ځکه نو د اظهار په عمل کي د ټېکنيك حېثيت مسّلمه دے- په جديد دور کي د تخليق د معيار په اړه ټېکنيکي بحثونه ډېر پېچيده دي او د دې سيمي د عامو لوستونکو تر دايره دباندي ځکه ښکاري چي نفسياتي او ساينسي اړخونه يې ژوره مطالعه غواړي- خو د انټرنېټ په برکت دغه مباحث هم اوس روځ په روځ آسانه کيږي ، ولي چي څېړونکي يې په آساني د نېټ له لاري ترلاسه کولای شي او ګټه ترې اخستلای شي -

په انساني ذهن کي د ښايست ادراك په احساس پوري اړه لري او احساس د هر چا بېل وي- کۀ څۀ هم په ظاهره احساس يو داخلي څيز ښکاري خو په اصل کي يې تړاؤ د پنځو واړو حواسو سره دے چي له خاريجي ماحول څخه اثرات اخلي[10]- چونکي د بېلا بېلو

حواسو کيفيت په مختلفو خلګو کي مختلف وي ، په غم کي يو شانتي او په خوشحالي کي بل شانتي ، په ناروغۍ کي يو رنګه او په روغتيا کي بل رنګه ، او بيا په بېلا بېلو وختونو کي هم يو غوندي نۀ وي ځکه نو د ښکلا ادراك په خلګو کي بېل بېل وي- بلي خواته دا هم حقيقت دے چي د حِسياتو بېلا بېلي سطحې دي- د بېلګې په توګه د رنګونو زياتوکم دوه سوه طرزونه دي ، د رڼا اووۀ سوه مدارج دي ، دآوازونو خواوشا لس زره سطحې دي او د خوشبويي درجې تر پنځه سوه هم زياتي منل کيږي- په دغه حساب تخليق کوونکي لره پخپله د دغو سطحو ادراك او فنکارانه اظهار يوه ډېر پېچيده مسئله ده ، او بيا يې ابلاغ تر دغه هم ګران کار ښکاري- ځکه نو ښکلا کۀ څۀ هم د تخليق د معيار يوه پېمانه ده خو په دغه ګچه به د تخليق ناپ ترکومه حده صحي وي ، د دې فيصله به پر نقادانو پرېږدو-

په ادب او فلسفه کي ټولنيز اخلاقي ارزښتونه هم د تخليق د معيار يوه بېله پېمانه ګڼل کيږي- ډېر پخوا ، تقريباً په ٣٨٠ مخزېږده کي افلاطون په 'ريپبليك' کي د غوره ټولني په ترکيب کي د اخلاقي ارزښتونو پر اهميت ډېر زور ورکړے ؤ- له هغي زمانې څخه تر اوسه پوري دا بحث[11] جاري دے چي آيا اخلاقي ارزښتونه د تخليق په معيار پوري څۀ اړه لري هم او که نۀ ؟ افلاطون شاعري ته په څۀ ښۀ نظر نۀ کتل- د دۀ دليل دا ؤ چي شاعري يوازي جذبات را پاروي- نۀ څۀ اعتدال پکښې شته ، نۀ برداشت او نۀ معقوليت- دۀ خو د هغه وخت ډېر داستانونه او د نامتو نابينا يوناني شاعر 'هومر' د شاعرۍ

ځيني برخي پر همدغه بنسټ د ماشومانو له تعليمي نصاب څخه ايستل غوښت- د دهٔ خيال ؤ چي دغسي داستانونه او شاعري د ماشومانو اخلاق ورخرابَوي ځکه يې ټينګ احتساب پکار دے- تر دهٔ وروسته هم تر ډېره وخته اخلاقي ارزښتونه د ادب د معيار يوه مهمه پېمانه منل کېده خو يوناني فلاسفر ارسطو پر شاعري او ادب د دهٔ دغه تنقيد قبول نهٔ کړ بلکي د ادب بشپړه فلسفيانه دفاع يې وکړه- دهٔ په کال ۳۳۰ مخزېږده کي په 'پوئيټيکس' کي دا نظر وړاندي کړ چي شاعري د عالمي اهميت وړ يو مهم تخليقي کار دے —

بيا په کال ۲۰ مخزېږده کي رومن شاعر هورېس په خپل تصنيف ' آرس پويَټيکا' کي شاعرانو ته دا مشوره ورکړې وه چي د ژوندانهٔ خوارهٔ او ګټور څيزونه سره را يو ځای کړئ چي د بېلا بېلو لوستونکو تسکين په وکړل شي- د دهٔ دا نظر ؤ چي يوازي د ژوندانهٔ خواره د لوستونکو تسل نهٔ شي کولای ، بايد چي شاعرانه استدلال د خلګو په ګټه هم وي- په يورپ کي تر عيسیٰ عليه السلام وروسته په عيسايي مذهبي دور کي هم تر ډېره د تخليق معيار پر بېلا بېلو اخلاقي ارزښتونو تلل کېدهٔ- په دې جديد دور کي هم اخلاقيات د تخليق د معيار يوه مهمه برخه ده- په کال ۱۷۱۱ کي انګرېز شاعر الېکزنډر پوپ دا ويل چي فطرت يو کايناتي څيز دے ځکه نو د تېري زمانې او د اوس وخت د ليکوالو په فطرت کي هيڅ توپير نشته- پرَته د نقادانو له استدلاله ، لوستونکو لره د اوسنيواديبانو پېغام هماغه شان دے لکه چي پخوا ؤ-

په يورپ کي ورو ورو د تخليق د معيار په حقله د اديبانو او پوهانو رايه بدله شوه او خلګو د ښکلا ميني او محبت په خوا هڅه وکړه- حِسياتو ته ډېر اهميت ورکړل شو- شاعري د خوند او ميني تر ذهني پابندي لاندي کېده ، ولي چي د لوستونکو ضرورت همدغه پاته شوے ؤ- په کال ۱۷۹۸ کي نوموړي انګرېز شاعر ورډز ورتهـ هم دا و ويل چي:

"All good poetry is the spontaneous overflow of powerful feelings"

يعني ټوله ښه شاعري د ژورو احساساتو د بې ساخته بهاؤ نتيجه ده- بيا د نولسمي پيړۍ نورو مغربي رومانوي اديبانو هم د تخليق د معيار په اړه احساس ، تخيّل ، مينه او خوند تر استدلال زيات مهم ګڼل- د دوی په نظر د فرد او ټولني تر منځ ، د ټولني او فطرت تر منځ او بيا د فرد او فطرت ترمنځ تړاو تر هرڅۀ مهم ؤ-

په کال ۱۸۴۰ کي نوموړي انګرېزشاعر پرسي بيسشي شيلې'دشاعرۍ په دفاع کي' په ډېر وسيع تناظر کي ګايېدلے دے- دے ليکي چي د صارفيت پر بنسټ ولاړ ساينس او ټېکنالوژۍ د خلګو تر منځ د برابرۍ فقدان نور هم زيات کړ او شاعري بايد چي د هغي خودغرضۍ پر ضد ودرېږي کومه چي د پيسې په غوښه چاغه ده- حقيقت هم دا دے چي د تخليق ډېر زيات کلتوري اهميت دے- په دې وخت کي چي قبايلي اومذهبي ارزښتونه په يوه يا بله وجه پر ځوړه روان دي ، ادب د خلګو رهنمايي کولای شي-

په کال ۱۸۸۰ کي د فرانس ليکوال نوموړي ايميلي زولا دا نظر وړاندي کړ چي ادب بايد د ژوندون پر حقايقو مبني وي- دۀ په خپله يوه مهمه مقاله "Le roman expérimental" کي د فطرتي ادب (Naturalistic Fiction) پر اهميت ډېر زور ورکړ- بيا تر دغه وروسته په يورپ کي په ډېره تيزي سره بدلون راغے- د ټېکنالوژي د ترقۍ سره سره يې په ټولنيزو کلتوري ارزښتونو کي هم غوره بدلون راروان ؤ- ورسره ورسره په ښارونو کښې نوي نوي پوهنتونونه جوړېدل لګيا وو- پوهانو يې و نقد و نظر ته هم توجه ورکړه- ځکه نوي نوي اصطلاګاني ورو ورو منځ ته راغلې- لکه مخکي چي يې هم ذکر شوے ؤ ، روسي نقادانو ويکټر شکلوسکي او ولادي مير پروپ د شلمي پېړۍ په لومړۍ برخه کي د فارمليزم[6] Formalism په نامۀ د ليټرېري تنقيد رسمي طريقه خپله کړه- دوی د مرکزي خيال پر اهميت ، د پلاټ پر پشپړه پَلټنه او د تحرير پر موزونيّت ډېر زور ورکاوو- ورسره ورسره يې د نورو ډېرو ادبي ارزښتونو بشپړ جاج هم پکښې په رسمي توګه اخستل لازمي ګاڼۀ - تر ۱۹۳۰ وروسته د شوروي اتحاد کمونيسټانو ادب د سياست تر سايه لاندي ساتل غوښت ځکه يې نو فارمليسټان تر فشار لاندي راوستل او د فارمليزم تحريك يې کمزورے کړ- ورو ورو د فارمليزم مرکز له روس څخه و مغرب ته ور واووښت- د امريکا ځينو ليکوالو هم د ادبي تحرير د متن د تنقيد دغه نوې طريقه خوښه کړه او کار يې ورباندي پيل کړ- په همدغه دور کي ځينې امريکايي ليکوالو د نوي تنقيد New Criticism په نامۀ د تحرير د

ساخت سره سره د لفظونو پر اداېګي او د غړونو پر جوړښت هم زور ورکړ-

دکال ۱۹۴۰ په خواوشا کي فرانسوي نقاد کلاډ لېوي سټراس او رونالډ بارتس د سټرکچرليزم[6] Structuralism په نامۀ يو بل فکر را وړاندي کړ- د دغه تحريك بنسټ پر کاګنيشن[ادراک] او کلتوري جوړښت ولاړ ؤ- دوی ادبي تنقيد يوازي د ژبپوهني تر اصولونو لاندي ساتل نۀ غوښت- بلکي د کاګنيتيو ساينس تر سايه لاندي يې کلتوري ساخت هم ورلره لازمي ګاڼۀ - د دوی نظر داؤ چي د شعور خپل ساينسي جوړښت شته چي له زوکړي څخه تر مړيني پوري د کس واړۀ يادابښتونو پکښې جمعه کيږي او پر دغه نفسياتي بنسټ يې د ادب جاج هم اخستل غوښت- دوی لره په ادب کي د علاماتو اهميت ډېر زيات ؤ او په ادبي تنقيد کي يې د ټولني د کلتوري جوړښت بشپړه پلټنه هم لازمي ګڼله-

دغه شان په ادبي تنقيد کي ډېر بدلون راغے او د معيار په اړه يې بېلا بېلي فکري ډلي تر ډېره حده سره را نژدې شوې- پر عالمي سطحه اوس نوي نقادان د تخليق جاج په علمي او تاريخي تناظر کي اخلي- دا هم اوس منل کيږي چي د هر تخليق کوونکي جذبات او احساسات تر ډېره حده هماغه دي کوم چي د نورو تخليق کوونکو دي او دا د ټولو سره ګډ انساني جذبات او احساسات دي- البته هر کس يې د خپل ماحول په حساب په خپل بېل انداز وړاندي کوي- دا دليل چي تخليق او تحرير يوازي د خوند د پاره کيږي ، معقول نۀ

ښکاري ولي چي يوازي په خوند د هر عمر ، هر مسلك او هر فکر د لوستونکو تسکين نۀ شي کېدلای- تخليق بايد چي بېلا بېل اړخونه ولري او د ټولني د لوی شمېر وګړو د ذهني تسکين باعث وګرځي- د نقادانو دا روَيه چي د تحرير بېلا بېل عيبونه پټ کړي او يا بيا يوازي د عيبونو په تلاش کي وي ، په هيڅ توګه هم صحي نۀ شي ګڼل کېدای-

په اوسني وخت کي په ساينسي توګه دا ثابته شوې ده چي په کومه ټولنه کي څوك اوسي نو د هماغي څخه به اثر اخلي- ټولنه په شعوري توګه او يا په لاشعوري انداز د فرد تخيّل ، احساس او طبيعت دومره وربدل کړي چي د تندي ، لوږي او جنسي جِبلتونو څهرې يې هم بدلي شي ، او د تسکين دپاره يې هماغه طريقې په کار راځي کومي چي په هغه ټولنه کي د قبولېدو وړ وي- د ژونګ د اجتماعي لاشعور نظريه هم تر ډېره حده د دغه فکر تصديق کوي- په حقيقت کي خو يو تخليق هم د اخلاقي ارزښتونو خلاف نۀ وي ، بلکي د ټولنيزو تحريماتو او قوانينو په تناظر کي يې د تخليقي حېثيت تعيُن کيږي- چونکي دغه تحريمات او قوانين ټول د ځينې سماجي ، سياسي او تاريخي عواملو سره تړاو لري ځکه بدلون پکښې راځۍ او اضافيت يې په ثابتيږي- تخليق يکسراضافي نۀ دے بلکي تر ډېره حده مطلق څيز دے ، ولي چي هر تخليق د تخليق کوونکي د خاص تخليقي صلاحيت په وجه انفراديت لري- د ټولنيزو قوانينو په شان د تخليق خپل بېل اصولونه هم دي ، چي په هيڅ توګه د اخلاقياتو

طابع نۀ دي- ځکه نو اخلاق د تخليق دمعيار يوازينۍ ګڅه نه شي منل کېدلای-

د تخليق د معيار په اړه د ريشتيا او فېنټسۍ بحث ، د خواهش او جذبې بحث ، د الهام او ارادې بحث ، د حق او باطل بحث واړه هلته ختم شي چيري چې بغاوتونه عام شي ، خلګ مرَوجه اصولونه او قوانين مات کړي ، هېئتي بد وضعي يوازي د تخليق کوونکي مسئله نه شي پاته بلکي په ټوله نړۍ کي همدغه شان بې ترتيبي شي- په دې دور کي خو هره خواته تخليقي ارزښتونه او د اظهار پاخه اصولونه ماتيږي لګيا دي- نوے نسل د ذهني انتشار ښکار دے- يوې خواته د جنګ بربادۍ ، ورانۍ او نۀ ختمېدونکے ډار بلي خواته پيوسته مايوسۍ او د مستقبل تور تمونه ، ځکه نوے نسل د بېلا بېلو نفسياتي مسئلو سره مخامخ دے- احتجاج کوي ، هر څۀ له منځه وړي ، پابندياني ماتوي او يو لېونتوب يې په مخه دے- د لباس قواعد يې تار تار کړل ، د موسيقي قوانين يې تر پښو لاندي کړل ، د اتڼ او رقص اصولونه يې ټول پاډې پاډې کړل ، تر دې حده چي د جنګ انساني او اخلاقي قدرونه يې هم پرې نۀ ښوول- په داسي حال کي به نو دکوم معيار خبره وزن ولري؟

خو بيا هم د تخليق د حقيقي معيار فېصله تر مطالعه او تفهيم وروسته د تخليق په بشپړه جايزه ، تجزيه او تشريح ممکنه ده چي په عمومي توګه تخليقي تنقيد بلل کيږي[12]- لکه مخکي چي يې ذکر وشو ، دغه جايزه ، تجزيه او تشريح يې څلور بېلا بېل اړخونه

لري- يو اړخ يې دا دے چي په فن پاره کي د تخليق کوونکي خپل نظر څۀ دے؟ بل دا چي په داحقله تاريخي شهادتونه څۀ دي؟ دريم دا چي د تخليق په حقله د نقاد نظر څۀ دے؟ او څلورم اړخ يې پرحقيقتونو مبني وي چي د تخليق د معيار سطحه په ټاکل کيږي- نقاد د تخليق هر اړخ په غور ګوري ، او دا پکښې لټوي چي:

۱- تخليق کوونکي دلوستونکو د تخيّل د الوت دپاره کوم زيار پکې کښلے دے؟

۲- په تخليق کي يې رواني او باريك بيني شته او که نۀ؟

۳- د فکر پختيا پکښې ښکاري او که نۀ؟

۴- ماورائيت پکښې شته او که نۀ؟

۵- تخليق چيري مدافعتي خو نۀ دے؟

۶- معقوليت پکښې شته او که نۀ؟

همدغه راز په تنقيدي نظر د تخليق نور بېلا بېل اړخونه هم کتل کيږي: لکه ژبه يا لساني شعور، تخليقي جوړښت، مقصديت او لوستونکو لره پيغام- نقاد د لوستونکي په نظر هم د تخليق جايزه اخلي او کله کله خو د هغې موخې پلټنه پکښې کوي، کومه چي د تخليق کوونکي په خپل ذهن کي هم نۀ وي- په دغه پلټنه کي نقاد د حقيقت او مجاز ترمنځ د هغي رشتې په تلاش کي وي کومه چي تخليق کوونکي په بېلا بېلو منظرونو کي پېچلې وي- چونکي نقاد د خپلي تجربې پر بنسټ په ټولنيزو توقعاتو خبر وي ځکه نو د لوستونکو د تکل ټکي پکښې ګوري او تشريح يې کوي-

زياتره خو پر تخليق باندي تنقيدي مقالې تر لومړۍ اشاعت ډېر وروسته ليکل کيږي ځکه يې نو بحث په تاريخي پسِ منظر کې وي- نقاد د تخليق کوونکي د ژوندانهٔ او د هغه وخت په مناسبت بحث ورباندي کوي ، په کوم کې چي دغه تخليق شوے وي- ورسره ورسره د تېر وخت موازنه د اوس وخت سره کوي چي لوستونکے د تخليق په هېئت او مقصد پوهـ کړي- تنقيدي مقالې ځای ځای خو د معيار د ښېګړي په موخه ليکل کيږي او کله کله بيا يوازې د تشريح دپاره هم وي- زياتره خو نقاد د تحليل او تجزيئې سره سره د معياري تخليق په حقله د خپلو روحاني وارداتونو اظهار هم پکښې کوي- د تنقيد ارزښت دنقاد په لساني شعور ، مطالعه ، پوهه ، مقصديت او نور ډېر څهٔ پوري اړه لري- په تنقيد کې دا هم په نظر کې ساتل کيږي چي د تحرير پر لوستونکو اثرات څهٔ دي؟ د تخليق پر ټولنيزه او عالمي سطحه حېثيت څهٔ جوړيږي؟ او کومه نتيجه چي ترې ايستله کيږي هغه پرحقيقت مبني ده اوکه نه؟

پايله دا چي د تخيل په قوت د څهٔ داسي نوي څيز مخته راوړنه ادبي تخليق بلل کېږي چي حاصل يې د خلګو په ګټه تمامېږي او د خوښۍ او خوند احساس پکښې را پاڅوي- ادبي تخليق مضمون او مقالې غوندي موضوع په پايله نهٔ رسوي بلکي يو خوږ غوندي احساس راپاڅوي چي اورېدونکي او لوستونکي د حېرت ، هيلو ، ښکلا او خوند لامتناهي کايينات پکښې ګوري- د تخليق کوونکي نفسياتي جوړښت له محقق او نقاد نه لږ بېل وي- د تاودهٔ احساس او

داخلي انفراديت په وجه اديب تخليق کولو ته اړ وي او دا هلي ځلي کوي چي تخليق يې تر خپلو جزونو ستر وي- که د ګل او بلبل ذکر پکښې وي نو د دۀ کوشش وي چي تاثر يې دومره خوږ او خوندور وي چي د ګل او بلبل تر حقيقي مقام يې حېثيت لوړ په ښکاره شي- بل نفسياتي توپير يې دا هم دی چي تخليق کوونکی تخليقي ليکنه تر نورو ليکنو ستره ګڼي ولي د دۀ تود احساس دے هر کله په دغه کار خوښ کاندي- تخليق له نورو تحريرونو ځکه هم ستر او بېل وي چي دا د لاشعور له شکمه زوکړی وي ، تر تنقيدي شعور لاندي يې خاپوړي کړي وي ، د ادبي قدرونو په سايه کي يې پل اخستے وي او د نظر په سمه زاويه وده کوي- تخليق هغه ستر انساني صلاحيت دے چي د آزادي ارادې او غوره انتخاب په ګدون يو کس د سرېتوب يا اشرف المخلوقات تر معنوي سطحي رسوي- ځکه نو د دۀ د نوو نوو خيالونو او تصوراتو هغه ستر صلاحيت بايد په څرګند شي چي دے يې د نورو کسانو څخه په بېل انداز وړاندي کوي- د تخليق او تنقيد دواړو بنسټ بايد چي پر معقوليت ولاړ وي او استدلال يې پر حق او ريشتيا مبني وي- د ټولنيزو ارزښتونو او انساني حقوقو ژغورنه پکښې وي- د انصاف او آزادۍ پر عالمي اصولونو يې جوړښت شوے وي- د ټولني په نوي تشکيل کښې مدد ترې اخستل کېدای شي- د تخليق کوونکي **دنظر زاويه** بايد پر فکر ، احساس او تجربه مبني وي چي د تور او سپين ترمنځ حقيقي توپير په ممکن وي او د سرېتوب[13] د اصولونو بشپړ تصديق په کيږي- همدغه يې د معيار ګچه ده ، همدغه يې د خوند او ښکلا راز دے —

## اخځليك


1- ډېشيز ، ډېو يډ (Daiches, David) ’د ادب تنقيدي جايزې‘
(Critical Approaches to Literature)دوهم اېډيشن ، لانګ مېن ۱۹۸۱

2- هارټ مېن ، جيوفرې ، ’خود رو تنقيد: د اوسني ادب مطالعه‘
(Criticism in the Wilderness:The Study of Literature Today )
ئېل يونيورسټۍ پرېس ، ۱۹۸۰ —

3- الېکزنډر ميچل ، A History of English Literature يعني
’د انګرېزي ادب تاريخ‘ مار ټن ۲۰۰۰

4- ابراهم ، مېئرهاورډ ، ’نارټن آنتالوجي آف انګلش ليټرېچر‘ ،
(The Norton Anthology of English Literature ) اووم اېډيشن ، ۲۰۰۱

5- اېنډرسن جان ، کاګنيټيو سايکالُوژي ، (Cognitive Psychology)
څلورم ايډيشن ، فري مېن ۱۹۹۵

6- وېلېك ، رينې ، ’د جديد تنقيد تاريخ: له ۱۵۰ څخه تر ۱۹۵۰ پوري‘
(History of Modern Criticism: 1750-1950) څلور ټوکه ،
کېمبرج يونيورسټي پرېس ، ۱۹۸۳ —

7- هال کالوين ، (A Primer of Freudian Psycology)
يعني دفرائيډ ابتدايي نفسيات‘ ورلډ ۱۹۵۴ او ډيوټن ، ۱۹۹۹

8 - فريجن ، سوسن او پيټرك مېنارډ ، ’جماليات Asthetics
آکسورډ يونيورسټۍ پرېس ۱۹۹۸ —

9- ګراهم ، ګورډن ، ’دآرټ فلسفه : د جمالياتو سريزه‘
(Philosophy of the Arts: An Introduction to Aesthetics)
دوهم اېډيشن ، روټلېج ۲۰۰۰ —

10- لېنګر سوسنې ، (Mind: An Essay on Human Feeling)
يعني ’ذهن: پر انساني احساس يو مضمون‘ دوه ټوکې ، ۱۹۶ - ۱۹۲

11- ايوان ، ايفور ، ' د انګرېزي ادب مختصر تاريخ ' ،
Short history of English Literature خلورم اېډيشن ، پېنګوئن ۲۰۰۱

12 - هرنادي ، پال ، ' تنقيد څۀ دے ؟ (What is Criticism?)
انډيانا يونيورسټۍ پرېس ، ۱۹۸۱

13- ډاکټر باقي دراني ، ' دفکر ټال ' د (سرېتاب فلسفه) صحاف نشرياتي موسسه
کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۳

★ ★ ★

# تخلیق او دنظر زاویه

د خلګو نظر د ژوندانهٔ د بېلابېلو اړخونو په اړه یو رنګه نهٔ وي- هرکس د حق ، ریشتیا اوښېګړي وضاحت پر خپل انداز کوي ، خو دغه انداز یې تر ډېره حده هماغه وي کوم چې په دغه سیمه کې د دغه وخت د نورو خلګو هم وي- یعني د ټولني دغه عمومي نظر د خپل وخت دفکري روَیو عکاسي کوي- د تخلیق کوونکي تړاو هم د خپلې ټولني سره وي ځکه یې نو په تخلیق کې ټولنیز رنګ له ورا ښکاره وي- چونکي پخوا خلګو ته دسفر دومري آسانۍ نهٔ وې او نهٔ د ابلاغو دومره آزادي وه ځکه نو د هري سیمي د خلګو د ښهٔ او بد معیار بېل بېل ؤ- د دغه عمومي نظر سره سره په ټولنه کې د خال خال بینا خلګو د فکر دائره ورو ورو پراخېده- دوی د ژوندانهٔ د داسي لاري په تلاش شول چې د خلګو و ژوند ته غوره معنا ورکړي ، د دوی فکر خپلو بُنیادي مسئلو ته راواړوي او حتمي ترجیحات یې وضع کړي- فلسفه د همدغو حتمي ترجیحاتو سره د وفادارۍ ضابطه ده چې موخه یې د خپلو ستونزو د هوارَولو په اړه د یوهٔ مستحکم او بلکل

صفا مېکېنيزم شعوري تلاش دے- نظريه دهمدغه صفا مېکېنيزم د عملي کولو سکيم دے چي يوکس دټولني د ښېګړي په هلو ځلو اماده ساتي- په ټولنه کي د بدلون په اړه عِلمي او عَملي اړخونه دواړهٔ تر بحث لاندي راوړي او په اولس کي معاشره سازه انساني خود شعوري وده په کوي- يعني فلسفه د ژوندانهٔ د هغه ستر تناظر نوم دے چي د حقيقت په خوا د مثبت طرزِعمل ښوونه کوي او غوره بدلون ته لار خلاصوي- د تخليق په فلسفه کي د نظريې بُنيادي ټکے د نظر زاويه ده چي د منزل پخوا د صحي سمت ښوونه کوي او د لاشعوري تخليقي تندي سره سره د تخليق کوونکي وشعوري تلاش ته د دليل په قوت مقام او استحکام وربخښي- ځکه نو په تخليقي عمل کي هم د ټولني د ښېګړي په حقله د نظر زاويه سمَول تر هر څهٔ مهم کار ګڼل کېږي-

د ټولني د نوروکسانو په شان تخليق کوونکے هم د يوهٔ نهٔ يوهٔ خاص فکر سره تړاو لري- دغه فکر تر هغه وخته ورته 'سم' ښکاري تر څو چي دے ورسره متفق وي- خو که چيري په يوه او يا بله وجه د دهٔ ورسره اختلاف پېداشي نو بيا هماغه فکر ورته 'غلط' ښکاري- ځکه نوصحي او غلط يا ښـهٔ او بد حتمي نهٔ شي ګڼل کېداى- کوم تخليق چي يوهٔ کس ته نن سم ښکاري ، ضروري نهٔ ده چي سبا هم ورسره متفق وي- ځکه خو تخليق کوونکے خپل تخليق هم په وارو وارو بدلوي رابدلوي ، تراشي يې چي په يوه غوره او ښېله بڼه يې خلکو ته وړاندي کړي-

دلته سوال دا دے چي د سم او چپ معيار به يې څۀ وي؟ د دغه سوال يوازينے ځواب دے "دنظرسمه زاويه"- صحي تخليق هميشه هغه دے چي سم محسوسيږي، ضمير په مطمئن وي، فکر يې مني او په صفا ټکو بيانيدلای شي- که تخليق کوونکے تعليم يافته وي نو د خپل نظر په باب بېلا بېل دليلونه وړاندي کوی او که يې تعليم نۀ وي نو د څۀ استدلال بغير هم په خپل نظر د يوۀ يا بل فکر سره دخپلي وفادارۍ اظهار کوي، کوم چي دے يې سم ګڼي- تخليقي ذهن کله کله د پردې په آخوا څيزونه هم تربحث لاندي راوړي- ولي چي دے د يوې داسي خيالي دنيا په تلاش وي چي تر دې لمحه دۀ ليدلې نۀ وي او نۀ يې په ظاهره د فکر او دانش په دايره کي ښکاري-

بل سوال دا دے چي د نظر زاويه کله اوڅنګه 'سمه' ګڼل کېدای شي؟ د دې سوال په ځواب کي د کچنيوالي يوه واقعه را ياد شوه- يوه روځ چرته روان وم چي لۀ لري خال غوندي يو څيز راته ښکاره شو، ورو ورو راغټيدے او راغزيدے- فکر مي کاؤ چي ځناوردے که موټر دے او کۀ څۀ بل شے، چي رانزدې کيږي او غټيږي- څو شيبې مي همدغه منظر په نظر کي ؤ او دومره مي سر پرې خلاص شو چي لارۍ ده او يا بس دے راروان دے- زۀ په خپل کار پسې پر خپله لار روان وم ځکه په څۀ بل فکر مشغول شوم- وروسته چي مي پام شو دا وړوکے غوندي څيز يوه اوږده غوندي بلا وه راغزېدله تيرېدله- دا لومړے ځل ؤ چي ما رېل ګاړۍ ليدلې وه-

دکچنيوالي دغه واقعه مي ځکه را په ياد شوه چي بحث د نظر د زاويې دے- کله چي مي رېل ګاړۍ له لري نه کتلې وه نو ډېره وړه غوندي وه او چي لږ نزدې شوه نو بيا غټه ښکارېده- همدغه شان چي مخامخ مي ورته کاتو نو لارۍ يا بس غوندي معلومېده خو چي کله يې اړخ راڅرمه شو نو ډېره اوږده راته ښکاره شوه- ځکه نو د يوۀ څيز حقيقت د نظر په سمه زايه پوري اړه لري- رېل ګاړۍ هغه وخت صحي پېژندل کيږي چي د اړخ له خوا وکتله شي نۀ چي مخامخ ، ولي چي مخ يې د بس يا لارۍ نه څۀ بېل غوندي څيز نۀ دے- د دنيا د هر يوۀ څيز حقيقت د يو کس د نظر په زاويه پوري اړه لري- يو تخليق چي کله چاته ښـۀ ښکاري ضروري نۀ دے چي دبل کس په نظر هم ښـۀ وي ، ترڅو چي د دواړو د نظر زاويه په دغه اړه يوه نۀ وي- د تخليق کوونکي د نظر زاويه هلته سمه ګڼل کيږي چي معقوليت ته غاړه کښېږدي او معقوليت په ټولنه کي د استدلال او اعتدال له لاري ممکن دے-

د انساني نفسياتو په ګچه[1] احساس ، فکر ، او تجربه د نظر د زاويئې د سموالي مهم ټکي دي- کله چي په انساني ذهن کي دغه درې واړه پر يوه کرښه برابر راشي نو بيا يې په سموالي کي څۀ شك نۀ پاتيږي- د احساس فلسفيانه بحث کۀ هرڅۀ دے خو ماته د نفسياتو په رڼا کي داسي برېښي چي احساس د روح هينداره ده- که څوك د يوۀ تخليق په اړه په دې فکر کي وي چي دا صحي دے او کۀ غلط ، نو دي دا وګوري چي محسوسيږي څنګه ؟ کۀ څۀ هم احساس په

ټولو خلګو کي يو رنګه نهٔ وي او نهٔ څيزونه په دومره آساني محسوسېدلای شي ، خو بيا هم داسي ښکاري چي کوم څيز يا عمل څومره زيات محسوسيږي هغومره وحقيقت ته نزدې وي- حقيقت بس دا دے چي په لفظونو ، تقريرونو او تحريرونو د احساس بيانولو حق نهٔ ادا کيږي- دا واړه محدوده دي او په هغه شان د احساس اظهارنهٔ شي په کېدلای څنګه چي يې يو کس په خپله محسوسوي- احساس خو بس احساس دے ، محسوسيږي بَيانېدلای نهٔ شي- د احساس تلاش خو په خپل درون کي هم په ډېرمُشکل کيږي ، بيان خو يې تش يو بهرَنے جُزوي غوندي شے دے- د انسان په درون کي چرته ډېرلري ښايي چي يو ځای د حقيقت کور وي او خپل احساس سرہ ټول عمر د همدغه حقيقت په تلاش کي سرګردان کاندي-

فکرځان لره له احساس څخه بېل يو داسي څيز دے چي د نظر زاويه اړه پرې لري- دا د انساني ذهن يو داسي مخفي قوت دے چي د الوت په آخري حد يې پخپله انسان هم خبر نهٔ دے- وسعت يې کايناتي دے او کاينات يوه لامتناهي سلسله ده- فکر او احساس زياتره سره پر څنګ څنګ وي- فکر د تجربې په رڼا کي نوي نوي امکانات را مخته کوي- په خيالي کرښو او تصويرونو بېلا بېلي زاويئې تر نظر لاندي راوړي- د يوهٔ داسي کائينات تَخَيُلي جوړښت کوي چي تر دې لمخه انسان نهٔ وي ليدلے- د حقيقت په تلاش کي چي کله احساس او فکر دواړه سره ملګري شي نو بيا دانش يا عقل بلل کيږي- د احساس د آس جِلؤ چي کله د فکر په لاسونو کي وي نو سمه لار په

آساني مومي او که داسي نۀ وي نو بيا څۀ معلوم چي چرته به ځي ، د تېروَتني امکان يې زيات شي او ژوندون دلويو لويو ستونزو سره مخامخ شي-

تجربه هم د نظر د سمي زاويئې مُهم ټکے ګڼل کيږي ولي چي د اوچت فکر کارکردګي د انسان په تجربه پوري اړه لري او تجربه په اصل کي هماغه څيز ده چي يو کس يې لمخه علم لري- دغه علم انساني ذهن د بېلا بېلو حواسو په ذريعه حاصلوي او په يادادښت کي يې خوندي ساتي- علم طاقت خو دے مګر حکمت هم ورلره ضروري دے او حکمت په فکر پوري اړه لري ځکه نو دا درې واړه عوامل د نظر د سمي زاويې تعيُن کولای شي- فکر او احساس دواړه چي پر کومه نُقطه مرکوزه کيږي هغه تجربه ده او 'دنظر زاويه' پرهمدغه ټکي جوړيږي- که چيري دغه زاويه سمه وي نو بيا په مُرَوجه توګه دانش هم ګڼل کيږي- دغه خاص زاويه د منزل پر طرف د تخليق کوونکي ، لوستونکي او نقاد سره سره د هر هغه کس لارښونه کوي کوم چي ويښ وي او دحق او رشتيا په تلاش کي د سرېتوب په اوږده سفر راوتلے وي- د نظر دغه زاويه لکه چي په رياضي کي د جيومېټرۍ د بېلا بېلو شکلونو د جوړښت موجب وي همدغه شان په آرټ او فلسفه کي دمنزل په خوا د يوۀ صحي سمت ښوونه کوي- لکه وړاندي چي يې ذکر وشو د ژوندانۀ په اړه د خلګو دنظر زاويه يو رنګه نۀ وي- دا زاويه د احساس ، فکر او تجربې پر بنسټ بې شمېره شکلونه لرلای شي او لري يې- دانش څۀ دے ؟ که د چا خيال وي

چي دا د نظر زاويه ده نو زۀ فکر کوم چي نۀ ، دانش يوازي 'دنظر زاويه' نۀ ده بلکي "د نظرسمه زاويه" ده- ددې مثال لکه په توره شپه کي د رڼا دے چي خيزونه صفا په ښکاري ، ښۀ په ايسي ، او يو له بله بېل په پېژندل کيږي- يعني د بېلا بېلو ځيزونو جوهر په ظاهريږي- دا د سړي و ژوند ته يوه بېله معنا ورکوي ، د هغۀ وشعوري تلاش ته د استدلال په قوت اِستقامت بخښي او يو خاص اهميت هم ورکوي- اوچت فکر په درون کي دخوښۍ او خوند احساس را پاخوي ، ژور احساس د ميني او ښايست مظهر ګڼل کيږي ، او پراخه تجربه د انسان په تخليق ، تحرير او تقرير کي پختګي راولي- دارنګه د نظرزاويه په همدغو درو واړو عواملو ؛ فکر ، احساس او تجربه اړه لري- کله چي د چا د نظر زاويه سمه شي نو بيا معقوليت مومي ، حقيقت ته غاړه ږدي ، د اعتدال لاره خپَلوي او رشتيا وايې-

که څۀ هم 'فکر' په عمومي توګه و عقل ته نژدې ښکاري خو لکه چي مخکي بحث ورباندي وشو ، عقل يې مثبت اړخ دے- همدغه شان ' احساس' له جذبې څخه بېخي بېل شے دے- جذبه د عقل ضد ده او احساس يې ملګرے ، ځکه يې يو له بله توپير لازمي ګڼم- په جذباتو کي خو زياتره غلطي فېصلې کيږي ولي چي د جذباتو تړاؤ د کس د جِبِلت سره دے ، نۀ چي داحساس سره- خلک په جذباتو کي هغه کارونه وکړي چي بيا ټوله عمر ورباندي پښېمانه وي- احساس خو يو مثبت ځيز دے چي د پنځو واړو حواسو (ليدنه ، څَکنه ، اوريدنه ، بُويَونه او محسوَسونه) تر مجموعي اثر لاندي

راپاڅيږي او بيا د تجربې په موجودګۍ کي ، دفکر په راهنمايي دنظر زاويه سموي- همدغه دنظرسمه زاويه ده چي دټولني ويښ زلمي تناؤ شلَولي خواهِشونه او جذبات په کنټرولوي- معياري تخليقونه په کوي ، د حق او ريشتيا طلب په جاري ساتي او د انسانيت تر معراجه د رسېدو په هلو ځلو وي- انګرېز فلاسفر جان لاك[2] واي:

It is one thing to show a man he is in error , and another to put him in possession of the truth

معنا دا چي يو څيز که سړي ته دا ښئي چي دے پر غلطي دے نو بل ورته د حقيقت لاربښونه هم کوي-

د حق او ريشتيا په طلب کي په فکري او عَملي توګه د تخليق کوونکي ځان پېژندنه ، ويښتيا ، قام ژغورنه ، دين دوستي ، انسانيت او خداى پرستي ټول د نظر په همدغه زاويه پوري اړه لري- کله چي د تخليق کوونکي د نظر زاويه سمه شي نو بيا په ژوندانۀ کي ذهانت ، دليل ، عزت او آزادي مهم ګڼي ، ورسره ورسره داجتماعي فکر پر اساس د هېواد د بقا او دخلګو د ښېګړي هلوځلو ته دوام ورکوي- تخليق يې ماورائيت مومي- په تحرير او تقرير کي يې ولوله ، تحريك او تهديد ښکاري-

اوس په نړۍ کي خلګ د نوو نوو فکري مسئلو سره مخامخ دي ، په زياته بيا په هغو سيمو کي چيري چي اوږدۀ او تباه کن جنګونه دوام لري- چرته چي وطن د نوو نوو فِتنو ځالۀ ښکاري او چيري چي

تخليق كوونكي او پوهان د جنګ پرستو تر جبر لاندي د فكر په ټال دي ځنګيږي- چرته چي حق ته حق ويل كبيره ګناه ده او د ريشتيا ويلو كمه سزا مرګ دے- چرته چي يوې خواته د جنت په طمع د سپېځلو خلګو د ويني سودا كيږي او بلي خوا ته د دې دور "سوداګر" د ايمانونو سوداګاني د سروزرو په طوقونو كوي ، هلته غني خان[3] دا سوال كوي چي:

ددې سرو د طوق بدل كښې

ځنګه دين او ايمان ور كړم ؟

په ټولنه كي د تخليق كوونكو سره سره عام خلګ اوس همدغه جبر او ظلم ويني او اثر ترې اخلي- په دغو حالاتو كي دلته د ټولني هر يو وګړے د ذهني پرېشانيو سره مخامخ دے- ځكه يې نو يوې خواته پر فكر او احساس بېلا بېل اثرات ليدل كيږي او بلي خواته دا نوي نوي تجربې هم پر تخليق او تخليق كوونكو اثرات پرېږدي- په دې حال كي نو د تخليق كوونكو مايوسي او ياسيّت پرستي لويه ګناه ده ، ولي چي دا د قام ستونزي نوري هم زياتوي- يوازينۍ سمه لار همدغه دنظرسمه زاويه ده چي تخليق كوونكي دټولني د زلمو جذبات په كنټرولولاى شي او په معياري تخليقونو د حق او ريشتيا طلب جاري ساتلاى شي-

د دغو كړكېچنو حالاتو د دې سيمي پر سپېڅلو خلګو د سياسي ، معاشرتي او معاشي اثراتو سره سره بېلا بېل نفسياتي اثرات

هم ليدل کيږي- د خلګو په کردار کي يو عجبه غوندي بدلون راروان دے- زاړۀ دوديز او ټولنيز ارزښتونه په ډېره کمه موده کي خلګو له لاسه ورکړل ، اوس نۀ خو ورورولی پاته شو اونۀ انسانيت- داسي ښکاري چي اوس يوازېنے ارزښت د پېسې دے ، نور هر څۀ له منځه ولاړل- د پېسې دپاره فراډ ، غلا ، اغوا او قتل هيڅوك هم اوس عار نۀ ګڼي- اورپُوکي او ځانمرګي غوندي ډېري بدۍ چي مخکي کله هم په ټولنه کي نۀ وې ليدل شوي ، اوس چي هر لوري ته وګوري په کثرت سره ليدل کيږي- نتيجه يې د بې يقينۍ په شکل مخته راغله- اوس دا حال دے چي څوك د چا په يوه خبره هم يقين نۀ شي کولای- ځکه نو سوال دا دے چي څۀ کول پکار دي؟ آيا دا د تاريخ جبر دے ګلوو به يې ، او که څۀ بله لارشته؟ ځواب يې دادے چي که د نظر زاويه سمه شي نو د فکر ، احساس او تېرو تجربو پر بنسټ په همدغو کړکېچنو حالاتو کي د غوره بدلون امکان شته- د دې سيمي خلګو ته احساس شته چي د بهرنيو مداخلتونو په وجه ټولنه د انتشار ښکار ده ، خو اوس د تېر مهال د تجربې په رڼا کي د فکر کولو ضرورت دے چي د نظر زاويه په سمه شي او د غوره بدلون د هلو ځلو پيلامه شي- د اجتهاد ضرورت اديبانو په هر دور کي محسوس کړے دے خو په دې سيمه کي يې پر ساينسي کرښو کله هم د پرمختګ لاره نۀ ده ټاکلې- رحمان بابا[4] هم خپله شاعري د هغه وخت نوے اجتهاد ګاڼۀ ، ځکه خو وايي:

چي دا نور شاعران کاندي هغه نۀ کا

رحمان کړے نوے نوے اجتهاد دے

ادب د ژوندانهٔ د تفهيم سره سره د ټولني اصلاح هم کوي- تخليق کوونکو لره د خلکو داسي فکري تربيّت کول پکار دے چي معقوليت پکښي را پيدا کړل شي او معقوليت هغه حقيقت دے چي د استدلال په قوت په ټولنه کي اعتدال راپاځوي- همدغه په ټولنه کي د سماجي انصاف غوره لار ټاکلای شي- ستر فکر په علم او تجربه پوري اړه لري چي تړاو يې شاته د يادښت سره دے - علم که د تاريخ وي که دمذهب ، که د ساينس وي او که د ټيکنالوژي ، پر فکر او احساس اثرات لري- د علم او تجربې ټول يادونه د انسان په يادښت کي خوندي وي او ورو ورو د دهٔ په فکر کي غوره بدلون راولي- لکه چي په څرګندون نمبر ۳۱ کي ښکاري ، علم او تجربه په




څرګندون نمبر ۳۱ د نظر د زاويئې په سمېدو کي د تجربې مهم رول

انساني فکر کي معقوليت پېدا کوي او د استدلال په قوت په ټولنه کي اعتدال وده په کوي- د معقوليت تقاضا داده چي په ټولنه کي د خلګو و ژوندانهٔ ته تر پېسي ډېر زيات اهميت ورکړل شي ولي چي ژوندون يوداسي نعمت دے چي تر نورو ټولو نعمتونو خوږ دے- د علم او تجربې پر بنسټ انساني فکر پختيا مومي ، احساسات يې بدليږي ، په رويه کي يې معقوليّت راځي او استدلال يې ورو ورو پر حق او ريشتيا مبني شي- او که بيا څوك يو داسي تخليق وکړي چي بنسټ يې پر ريشتيا ولاړ وي نو ماورائيت ، ښکلا او خوند به يقيني پکښې ښکاري- کله چي په دغو واړو عواملو د تخليق کوونکي د نظر زاويه سمه شي نو بيا دے د ياسيّت له تورو تيارو رابهرشي او همه وخت ددې حقيقت اظهار کوي چي د ژوندون په فلسفه کي دانسان دا عارضي ژوند هم په هره توګه د قدرت يو ستر نعمت دے او حفاظت يې په هره توګه يوه مهمه فريضه ده- همدغه د پوهني فلسفه ده ، دانش دے او سمه لار ده-

د تخليق کوونکو د نظر په سمه زاويه او پر دغه بنسټ ولاړ په معياري تخليقونو ، په ټولنه کي د ميني سره سره اعتدال او معقوليت ته فروغ ورکړل کېدای شي- ژبه د اديب د داخلي تخليقي قوت د اظهار تر ټولو مهمه ذريعه ده- دا شعوري او لاشعوري دواړه اجزا لري- يوې خوا ته اديب په خپله خوږه ژبه په خلګو کي د ښکلاوو ، مسکاوو ، خنداوو ، خوشحاليو ، سياليو ، ننګونو ، اتڼونو ، خوښيو او دغه شان نورو جذبو تصديق کولای شي- بلي خواته د

اديبانو، شاعرانو او فنکارانو د نظر په سمه زاويه د اولس د درد، غم، اوښکو او اسوېلیو احساس هم ژوندے ساتل کېدای شي- د ټولني د درد عميق احساس په زلمو کي د قام مينه راپاخوي او دغه مينه يې د سرېتوب تر منزله رسوي- هغه ويښ زلمي چي د نظر زاويه يې سمه وي او د ټولنيز درد تر احساس لاندي دځوانو جذبو ستاينه هم کوي، په دې آګاه وي چي دپاخه آرټ او لټرېچر اهميت څهٔ دے او د زړه له قومي يې قدر او احترام څومره مهم دي- دوی د ژونګ د اجتماعي لاشعور د تصّور سره سم دا فکر کوي چي يوکس هم له خپلي ټولني څخه بېل نهٔ دے او ټولنيز ارزښتونه ساتل د تخليق کوونکو سره سره ددوی هم مهمه فريضه ده-

د معياري تخليقاتو تر اثر لاندي، د نظر په سمه زاويه دټولني هر يو کس[5] 'سړے' کېدای شي- دمعقول ضبطِ نفس ابلاغ اوحمايت په کېدای شي- دارنګه د ټولني د يوشمېر وګړو په اعمالو کي درندتيا راځي- ځکه به نو د غلا، اغوا، فراډ، قتل او جنسي بېراه روی څخه ډډه کوي- که تخليق کوونکي پر ساينسي کرښود ذهن په قوت د تخليقي تندي د تسکين هلي ځلي وکړي نو به يې په تخليقاتو کي د همه واړو ټونيزو ارزښتونو او مذهبي قدرونو داحترام عکس وي- کوم څهٔ چي په ټولنه کي بد ګڼل کيږي هغه به بد شمېري او هر هغه څهٔ چي خلګ يې ښهٔ ګڼي هغه به ورلره ښهٔ وي- خو ورسره ورسره به د هغو بدو رَويو د اصلاح هلي ځلي هم کوي دکومو له کبله چي ټولنه د انتشار سره مخامخ وي- د سم نظر ليکوال خو د معاشرې د

اصلاح په غرض تمام غلط رسمونه او رواجونه هم په معقوله توګه او د استدلال له لاري تر بحث لاندي راوړي- ورو ورو يې له ټولني لري کوي او يا يې د معقوليت په دايره کي دننه راولي- د سم نظر دغه مخلص او آګاه ليکوال نهٔ دچا عزتِ نفس مجروح کوي او نهٔ يې په ټولنه کي د جذباتو خلاف د څهٔ اِشتعال حمايت کوي- په ټولنه کي د دوی هر اختلاف د معقوليت په دايره کي دننه وي-

په تخليق ، تحرير او تقرير کي د نظر په سمه زاويه دځان تر انفرادي ګټو او ذاتي موډ دقام واجتماعي ګټو ته زيات اهميت حاصل دے- که څهٔ هم د فطرت تقاضا داده چي' اول ځان بيا جهان' خو دا تر يوهٔ حده معقوله ښکاري ، ترهغه وروسته بيا څهٔ معنا نهٔ لري- هغه حد يې د يوهٔ کس تر بُنيادي ضرورتونو پوري دے- کله چي يې د خوراك ، څښاك ، پوښاك او استوګي ضرورت پوره شي نو بيا اصل اهميت د قام د اجتماعي ګټو شي- که په يوهٔ کار يا يو عمل کي ذاتي ګټه وي او د قام په نقصان تماميږي نو معقوليت داد ے چي دغه کار دي ونهٔ شي- بلي خواته که بيا يو عمل داسي وي چي قام ته يې ګټه رسي او د ځان فايده پکښي نهٔ ښکاري نو بايد چي په هره توګه تر سره شي ولي چي دغه قام ژغورنه هم د تخليق کوونکو په ګډون د ټولني د هر وګړي فرض دے- تخليق کوونکي لره تر انفرادي آزادۍ وروسته د ټولنيزي آزادۍ غوښتنه او بيا پر هره سطحه د انساني آزادۍ او بشري حقوقو د احترام ابلاغ د نظر په سمه زاويه ممکن دي-

تخليق کوونکے بايد چي د بشري حقوقو له اهميّته ښهٔ خبر وي ، ولي چي هر انسان ته د انسان په نظر کتل د نظر سمه زاويه ده- خو بشري حقوق هم خپله دايره لري او تر دغه دايره دباندي بيا سماجي او سياسي کشالې ترې جوړيږي- که څهٔ هم د نظر په سمه زاويه د بشري حقوقو او انفرادي آزادۍ صحي حدونه ټاکل کېدای شي خو په ټولنه کي د فرد آزادي همېش د بل د عزت پر سرحد ختمه ګڼل کيږي- هر يوهٔ تخليق کوونکي ته د هر رنګه وينا بشپړه آزادي شته او ورسره ورسره دلاس غورځولو هم ، خو دغه آزادي يې هلته ختمه ده چېري چي د بل د پوزي حد شروع کيږي- همدغه شان په اجتماعي ژوند کي د نورو قامونو سره د ورور ولۍ پر اساس تړاو او د هغوی د حق ساتنه د نظر په سمه زاويه ممکنه ده-

د ادب تاريخ ګواه دے چي شاعرانو او اديبانو همېش د خپل وخت پر سياست څهٔ نهٔ څهٔ مثبت اثرات پرېښي دي- د آګاه تخليق کوونکو په نظر واك په زور تر لاسه کول په هيڅ توګه هم جايز نهٔ وي- واك په ګډه دنظر سمه زاويه ده او هم دغه د بقا لار ده- واك په زور خو بربادۍ ته بلنه ورکول دي- په دې دور کي د واك په اړه يوازينۍ معقوله لار جمهوريت دے ولي چي نوري لاري بېلا بېلي ستونزي رامنځ ته کوي او دنيا يې هم نهٔ قبولوي- د سم نظر تخليق کوونکي د معاشرتي ، مذهبي او سياسي آزدۍ بشپړحمايت کوي ، خو په ټولنه کي د بېلارۍ اجازت نهٔ ورکوي او نهٔ د سياست پر نامهٔ د خلکو د ټېکسونو دغلط استعمال حمايت کوي- ولي چي دولتي

وسائل د قام امانتونه دي او حفاظت يې قامي فريضه ده- امن په انصاف او مساواتو پورې اړه لري چې ابلاغ يې په غوره تخليقاتو ممکن دے- په زورهيځکله هم امن نۀ شي راتلای- زور ټولني ته اور وَلګوي او انصاف ورباندي اوبه اچَوي- تخليق کوونکے په غوره تخليقي فن پارو د انصاف او برابرۍ کاروان پر مخ بېولای شي خو دا هم يو حقيقت دے چې انصاف او برابري همېشه د کمزورو غوښتنه وي ، زورَور خو ورته کله هم ځان اړ نۀ ګڼي- په دې حقله د افلاطون[6] يو قول دے چې:

The weak are always anxious for justice and equality, the strong pay no heed to either معنا دا

چې کمزوري هر کله وانصاف او برابرۍ ته پرېشانه وي ، زورور دغه دواړه هيڅ هم نۀ ګڼي-

که څۀ هم دتخليقي عمل پېل د کس په داخل کې کيږي خو دا بېلا بېل خارجي محرکات هم لري- بېلا بېل داخلي او خارجي وقوعات يې موجب ګرځي- د تخليق کوونکي د تخليق تړاو د خپل وخت ، پېر يا دور سره هم وي- په کوم پېر کې چې تخليق کيږي د هماغه دور رنګ پکښې ليدل کيږي- لکه چې تاريخ د خپل مهال د حالاتو پته ورکوي همدغه شان ادب د خپل دور هينداره بلل کيږي چې پکښې د ټولنيزو ، ملکي او عالمي حالاتو عکس ليدل کېدای شي- د نظر په سمه زاويه د نړۍ د نورو هېوادونو سره د داسي اړيکو ساتلو ابلاغ کېدای شي چې هدف يې د معقوليت پر بنسټ خپلي دولتي

ګټي هم وي- معقوليت يې بايد چي پر دې بنسټ وي چي د ملت هر وګړے تر انفرادي ګټه وقامي ګټو ته زيات اهميت ورکړي[5]، د تخريب لاري ونيسي او د تعمير په هلو ځلو وي- په تخليق کي اوچت معيار ساتل دفرد دبګړۍ او د قام دبېرغ په مثال دي- د تخليق کوونکو مُهم اخلاقي فرض دا هم دے چي په تجارت کي د ناجايزه ګټي غندنه وکړي او په کارو بار کي د ديانتدارۍ درس ورکړي-

حقيقت دا دے چي تخليق کوونکي د خلګو د ښېګړي په حقله د نظر په سمه زاويه د قام رهنمايي کولای شي- دا رهنمايي يوازي د سياسي خلګو ذمه واري نۀ ده بلکي د پوهانو، ليکوالو او اديبانو هم ده- د ملي ورورولۍ تقاضا دا ده چي د عقيدې، نسل او جنس پر بنسټ په خلګو کي تفريق ونۀ شي بلکي اصل اهميت و علم، اهليت، قابليت اوهنر ته حاصل وي چي د ملت د پائښت او پرمختګ ضمانت په ورکړ شي- چونکي د قامونو د ترقۍ او د خلګو د ښېګړي کيلۍ تعليم او ټېکنالوژي دي، ځکه يې د ترلاسه کولو هلي ځلي د تخليق کوونکو هم مهمه فريضه ده-

امن د دې وخت تر ټولو مهم ضرورت دے ولي چي په ټولنه کي دغوره بدلون لار د توپك په زور انقلاب نۀ دے بلکي سرېتوب او غېرمتشدد قامي تحريك دے- دا صحي ده چي تخليق په وينه کښې جوش او ولوله راپېدا کولای شي- د ستر تحريك موجب ګرځېدلای شي او په خلګو کي د قربانۍ جذبات هم راپارولای شي- خوکه يوازي

جذبات او احساسات د تحريکونو پوړي په لاسو کي ونيسي نو به د منزل پته ترې ورکه وي- ولي چي د منزل لار خو د نظر په سمه زاويه وړَله کيږي او دغه زاويه د احساس سره سره په فکر او تجربه پوري هم اړه لري- ټولنه خو د انقلاب د خواهش سره سره د معقوليت او استدلال تقاضا هم کوي- په انساني ذهن کي خو احساس هم هميش پر دوو متضادو مشتمل وي لکه ښهٔ او بد ، خوارهٔ او تراخهٔ ، سپين او تور ، پوست او کلك- فکر ، يادانښت ، ادراك ، ژبه او نظر د انساني ذهن هغه اجزا دي چي احساس ته د منزل پته ورکوي ، کنې دا خو د بهاندو اوبو په شان په هره خوا بهيدلای شي- ځکه نو د حکومتي نظام په توګه په هېواد کي د جمهوريت غوښتنه او ساتنه د هماغو پوهانو ، اديبانو او ليکوالو وظيفه ده د کومو چي دنظر زاويه سمه وي- جمهوريت که هر څومره ناتوانه وي خو بيا هم تر آمريت په هره توګه غوره نظام دے ، ولي چي دا دخلګو په ټاکنو پوري اړه لري او خلګ که يو وار تېروزي نو بل وار احتياط ضرور کوي او سم انتخاب ته چمتو هم وي- پر عالمي سطح د دنيا د سلامتۍ او بقا د ټولو هلو ځلو حمايت کول د آګاه تخليق کوونکو مرام وي او همدغه د دې وخت تقاضا ده- د نړۍ د تباهۍ خواهش په منفي فکر کي وده کوي ، د تخليق کوونکو مثبت فکر خو دبقا لاري لټوي- د امن او سلامتۍ هلي ځلي د نظر په سمه زاويه پوري اړه لري او هغه هم د بشري ارزښتونو پر بنسټ —

لنډه دا چي انساني ذهن د دماغ غېرمادي برخه ده- فکر ، احساس او يادانښت (تجربه) يې مهِمي حِصې دي چي د ادراك يا

کوګنشن په نامه يو مربوط فکري نظام جوړوي- عقل د دغه فکري نظام مثبت اړخ دے چي د انسان په رَويه يعني عمل او ردِعمل کي توازن پيدا کوي- د يوې وقوعې تر اثر لاندي، د فکر احساس او تجربې پر بنسټ په عمل کي معقوليت پيدا کول د نظر سمه زاويه ده- وقوعه خارجي هم کېداى شي او داخلي هم- خيال، وسواس، خواهش، تصوّر، توجه، ګمان، يقين او جذبه هر يو ذهني وقوعه کېدلاى شي- هره وقوعه په ذهن کي دننه د يوۀ بشپړ فکري عمل برخه ده چي په تواتر سره د نظر پر زاويه اثرات پرېږدي لګيا وي- دبېلګې په توګه سخت تنقيد تخليق کوونکي لره يوه وقوعه ده چي د فکر تارونه يې خېږي- دے دا تاثر ترې اخستلاى شي چي نقاد ورسره ډېر بد وکړل- دا رنګه يې په ذهن کي د غم او افسردګۍ احساس راپورته کيږي- په عمومي توګه يې په رويه کي بدلون راځي او د نقاد سره ماڼے کوي- ردِعمل يې دا کېدلاى شي چي خښم وکړي اوجګړه ترې جوړه شي- خو که تخليق کوونکے تجربه ولري او د خپل مقام ادراک ورته وي نو بيا دے مثبت ردِعمل ښکاره کوي، د خپل تخليق بېرته جاج اخلي او د دغه تنقيد يو معقوله ځواب لټوي- دغه معقوليت يې د نظر سمه زاويه ده چي د فکر او احساس سره سره تجربه هم پکښې برخه لري او د کوګنيشن يا ادراک تر نظام لاندي يې په سمه پايله رسوي-د بېلا بېلو وقوعاتو دغسي لامتناهي سلسله او ورسره تړلي فکرونه، احساسات، رويه، عمل او ردِعمل په نفسياتي توګه درَويې خرخ بلل کيږي- لکه مخکي چي بحث ورباندي وشو ،دا

په ټولو خلکو کي يو شانتي نهٔ وي بلکي په رفتار کښي يې تېر و پاته او په جوړښت کي يې څهٔ نهٔ څهٔ توپير په آساني سره ليدل کېدای شي- د هر تخليق کوونکي په ذهن کي د رَويې څرخ په همدغو عواملو پوري اړه لري- همدغه شان وقوعات وربانديي اثرات کوي- د بېلګې په توګه د بم چاودنه يوه وقوعه ده چي د تخليق کوونکي پر فکر ډېر بد اثر اچوي او درد يې دے پخپله احساسَوي- ددهٔ فکر تر ډېره حده شعوري څيز دے او احساس يې لاشعوري- تخليقي تنده يې هم د غم او افسردګۍ په شان يو لاشعوري احساس دے چي د بېلا بېلو وقوعاتو تر اثر لاندي ويدهٔ فکري نظام را ويښَوي او په موډ کي بدلون راولي- ځکه نو په موډ کي دغه بدلون يوه تخليقي رَويه ده چي په نتيجه کي يې بيا د تخليقي عمل پېل کيږي- تخليق د دغه عمل حاصل دے چي د مثبت او منفي اړخونو اړه يې د نظر په زاويه پوري ده- دا زاويه يې شعوري کره کتنه ده چي بشپړ فکري نظام پکښې برخه اخلي او د ادراک په موجودګي کي سموالے مومي- د آسانتيا دپاره د رويې دغه څرخ په څرګندون نمبر ٣٢ کي ستاسو په وړاندي دے چي د دغه پېچلي نظام اضاحت په وشي-

زموږ حالات داسي دي چي په ټولنه کي مو جنګ ، جهالت او غربت دی ، تعليم او تربيت نشته ، معاشي حالات مو خراب دي ځکه نو حساس خلګ تر فشار لاندي دي او د نورو قامونو په نسبت د کمترۍ احساس او منفي رويې پکښې زياتي دي. منفي رويې د خلګو انتخاب نهٔ وي بلکي مجبوري يې وګرځي. امنيت ، تعليم ، انصاف او




څرګندون نمبر ۳۲ د تخليقي رويې څرخ

معاش د کمترۍ احساس لري کوي او د غوره بدلون لاري ټاکي. څکه نو که ليکوال د قام د اجتماعي رويو د بدلون شعوري هلي ځلي وکړي ، تخليق تحقيق او تنقيد يې په اخلاص وي نو معقوليت وده په کوي. ولي چي اخلاص ولوله راپاروي او د يوۀ نوي مثبت تحريك موجب ګرځي.

# اخځليك

1- اېنډرسن جان ، کاګنيټيو سايکالُوژي ، (Cognitive Psychology)
څلورم ايډيشن ، فري مېن ۱۹۹۵

2- جان لاك ، (An Essay Concerning Human Understanding)
’ د انسان پر دانش يوه مقاله ‘ ، آکسفورډ يونيورسټي پريس ، لندن

3- غني خان ، ’ د غني کليات ‘ دقومونو او قبايلو وزارت ، د نشرياتو رياست ۱۹۸۵

4- عبدالرحمان بابا ’د رحمان بابا کليات‘ ، دانش خپرندويه ټولنه ،
پېښور ، سريزه حنيف خليل ۲۰۰۵ ،

5- ډاکټر باقي دراني ، ’ دفکر ټال‘ صحا ف نشرياتي موسسه
کاسي روډ کوټه ، ۲۰۱۳

6 - براين مېګي ، ’ د فلسفې نکل (The Story of philosophy) ‘
ډارلينګ کينډرسلې (ډي کې ) کتابونه ، ۲۰۰۱

★ ★ ★